


سلسلة مطبوعات (النجاة) رقم (5)

# الكمال

## في

# دروس الجمال

ليكونكى

أبوياسر (عمر أحمد) الأفغاني



طبع باهتمام
مؤسسة النجاة الاجتماعية الخيرية
افغانستان

الطبعة الأولى
١٤٣٧هـ - ٢٠١٦م

# د تجوید اهمیت

د تجوید اهمیت په باره کې الله ﷻ فرمائي:

﴿ وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ﴾ المزمل.

امام بیضاوي (رحمه الله) ددې آیت په تفسیر کې فرمائي:

" ای جود القرآن تجویداً ".

ژباړه: وایه قران مجید په تجوید سره.

او علي (رضي الله عنه) فرمائي:

" الترتیل هو تجوید الحروف ومعرفة الوقوف ".

ژباړه: ترتیل دحروفو کره کولو او دوقفونو پیژندلو ته وایي.

## د ترتیل اقسام

ترتیل په دوه قسمه دی:

① تجوید الحروف. ② معرفة الوقوف.

- تجوید الحروف هم په دوه قسمه دي:

① مخارج الحروف. ② صفات الحروف.

- مخارج الحروف هم په دوه قسمه دي:

① المخارج المحققة. ② المخارج المقدرة.

- صفات الحروف هم په دوه قسمه دي:

① الصفات اللازمة. ② الصفات العارضة.

- صفات لازمه هم په دوه قسمه دي:

① صفات لازمه متضاده. ② صفات لازمه غیر متضاده.

- صفات عارضه په څلور قسمه دي:

① عارض بالصفت. ② عارض بالحرف.

③ عارض بالوقف. ④ عارض بالحرکة.

- معرفة الوقوف هم په دوه قسمه دی:

① کیفیة الوقف. ② محل الوقف.

- محل الوقف په شپږ قسمه دی:

① وقف اتم یا لازم. ② وقف تام. ③ وقف کافي.

④ وقف حسن. ⑤ وقف قبیح. ⑥ وقف اقبح.

- کیفیة الوقف په پنځه قسمه دی:

① وقف بالسکون. ② وقف بالاسکان.

③ وقف بالاشمام. ④ وقف بالروم.

⑤ وقف بالابدال.

**فائده**: ترتیل په لغت کې صفا صفا لوستلو ته وایي.

او شرعا: ترتیل په شپږو خبروباندې عمل کولو ته وایي:

① هر حرف د خپل مخرج نه صحیح اداء کول.

② د صفاتو لحاظ ساتل.

③ د وقف او ابتدا لحاظ ساتل.

④ حرکات معروف اداء کول.

⑤ اواز ښایسته کول.

⑥ د شد او مد خیال ساتل.

اوله لمعه

## دعلم تجوید ابتدائی خبري

د هر علم په شروع کی د یو څو خبرو پیژندل په کار دي چی پدې لمعه کې به د تجوید علم اړوند ابتدائي خبرې په لاندی ترتیب سره بیان شي:

1. تعریف د علم التجوید.
2. موضوع د علم التجوید.
3. غرض د علم التجوید.
4. فائده د علم التجوید.
5. حکم د علم التجوید.
6. واضعین (بنسټګر) د علم التجوید.
7. ارکان د علم التجوید.
8. اصطلاحات د علم التجوید

### تعریف د علم التجوید

تجوید په لغت کې ویل کیږي : (تحسین الشئ) یعني خایسته کول د یو شي ته.

او په اصطلاح کې: (هو أداءالحروف من مخارجها الخاصة لها مع جميع صفاتها اللازمة والعارضة بسهولة وبغير كلفة).

ژباړه: (تجوید) ادا کول د حروفو دي د خپلو خاصو مخرجونو څخه ، سره د ټولو صفات لازمه او عارضه ؤ نه، په سهولت سره بغیر د سختئ او تکلیف څخه.

نو د علم التجوید « دتجوید علم » داسې تعریف کولی شو: (هو علم يبحث فيه عن مخارج الحروف وصفاتها وعن طرق تصحيح الحروف وتحسينها).

ژباړه: دا یو علم دی چې بحث کیږي پدې کې د مخارجو د حروفو او د هغو دصفاتو او د هغو طریقو د صحیح کولو د حروفو او خایسته کولو د هغې نه .



Scanned by CamScanner

**حاصل** : علم التجويد د هغې علم نوم دی چې په هغې کې د عمل لپاره څه قواعد بيانيږي.

او تجويد د هغې عمل نوم دی چې په کولو سره يې د قرآن کريم الفاظ او حروف خايسته کيږي نو تجويد د عمل نوم دی او علم التجويد دعلم نوم دی.

**موضوع ددې علم**

موضوع ددې علم حروف هجاء دي يعني الف نه تر يا پورې.

**غرض ددې علم**

(**هو صون اللسان عن الخطأ في أداء القرآن، وتلاوته كما أنزل، وتحسين القراءة**).

**ژباړه**: ساتل د ژبې دي د غلط قرآن لوستلو نه، او په هغه طريقه قران کريم لوستل لکه څرنګه چې نازل شوی دی، او خايسته لوستل.

**فائده ددې علم**

(**سعادة الدارين**)، د دواړو جهانونو (دنيا او آخرت) کاميابي او نيک بختي ده.

**حکم ددې علم**

دعلم التجويد حاصلول فرض کفائي دي. او قران کريم د تجويد د قواعدو موافق وئيل فرض عين دي.

**ارکان ددې علم**

ارکان د علم التجويد څلور دي:

1. مخارج الحروف (دحروفو مخارج)
2. صفات الحروف (دحروفو صفات)
3. ترکيبي احکام او قواعد.
4. د ژبې سره محنت او رياضت کول.

## واضعين (بنسټګر) ددې علم

واضعين ددې علم په دوه قسمه دي :

1. من حيث الأداء.
2. من حيث القواعد.

### من حيث الأداء

رسول الله ﷺ پخپله دی، څکه په قرآن کريم باندې داسې تلفظ رسول الله ﷺ پخپله کړی دی (يعني د تجويدو قواعدو موافق) .

### من حيث القواعد

يعني ددې علم لپاره دا قواعد چا جوړ کړي دي؟ .

ددې علم لپاره دا قواعد ابو الاسود الدؤلي د عمر او علي (رضي الله عنهما) په حکم جوړ کړيدي، او تفصيلي قواعد امام خليل او امام فراء او سيبويه وغيره جوړ کړي دي. او ددې علم وضع او ترتيب په (۱۵۰) هجري کې شوی دی .

## اصطلاحات

له دې څخه د تجويد هغه اصطلاحات مراد دي چې د تجوّيد په کتابونو کې ذکر کيږي لکه حرام، مکروه، واجب فرض وغيره .

له حرام او فرض نه مراد شرعي حرام او فرض نه دي بلکه عرفي حرام او فرض ترې مراد دي .

بعضې د تجويد علماء وايي: چې مراد له دينه شرعي فرض او حرام وغيره دي لکه صاحب العميد، او نهاية القول المفيد په دې باندې تصريح کړې .

ددې تفصيل ما په خپل کتاب (الملخص الفريد في علم التجويد) کې کړی دی .




## د لحن پېژندنه

د تجويد لغوي او اصطلاحي تعريفونه بيان شو اوس په دې لمعه کې د لحن بيان کيږي، ځکه د عربي مشهوره مقوله ده چې:

(تعرف الأشياء بأضدادها).

ژباړه: هر يو شی پيژندلی شي په خپل ضد (مقابل) سره .

نو د تجويد ضد لحن دی .

دلته د يوځو خبرو پيژندل ضروري دي .

1. د لحن تعريف .
2. د لحن ډولونه .
3. د لحن حکم.

### د لحن تعريف

لحن په لغت کې لهجې، خوش اوازۍ او غلطۍ ته وايي.

او په اصطلاح د علم التجويد کې: قران کريم د تجويد د قواعدو نه خلاف لوستل، يا بې قاعدې او غلط لوستل .

د تجويد نه خلاف قران لوستل: يعني هغه حروف چې مشابه بالصوت وي په هغې کې غلطي کول، غلط لوستل ، يعني په حرکاتو او سکناتو کې غلطي کول، بې قاعدې لوستل، يعني صفات عارضه نه اداء کول .

### د لحن ډولونه

لحن اولاً په دوه ډوله دی :

1. لحن جلي . 2. لحن خفي .

## ① جلي (ښکاره) لحن

ښکاره او غټې غلطۍ ته وايي چې د قرآن کريم په يو لفظ کې راشي د قرائت ظاهري شکل او د کلمې جوړښت ته تغيير ورکوي ، دا داسې غلطي وي چې په دې باندې هر خاص او عام پوهيږي لکه د "الحمد" په ځای "الهمد" ويل .

### لحن جلي اقسام

لحن جلي په پنځه قسمه دی :

① د يو حرف په ځای بل حرف ويل لکه د وانحر په ځای وانهر ويل.

② د يو حرکت په ځای بل حرکت ويل لکه: د "صِراطَ" په ځای "صَرَاطَ" ويل.

③ زياتول د يو حرف يا کمول د يو حرف. لکه: د "قالُوْا" په ځای "قالُ" ويل او د "قَالَ" په ځای "قَالا" ويل.

④ ساکن کول د متحرک حرف او يا حرکت ورکول ساکن حرف ته. لکه :د "فَضَّلْنَا" په ځای "فَضَلْنَا" ويل يا د "خَلَقْنَا" په ځای "خَلَقَنَا" ويل.

⑤ بدلول د مخفف حرف په مشدد باندې يا بدلول د مشدد حرف په مخفف حرف باندې. لکه: د "مُطَاعٍ" په ځای "مُطّاعٍ" ويل يا "دُرِّيٌّ" په ځای "دُرِيٌّ" ويل.

### د لحن جلي حکم

حکم د لحن جلي دادی چې دا حرام دې يعني ددې لوستل او اورېدل دواړه حرام دي او په بعضې ځايونو کې پرې لمونځ هم فاسديږي نوځکه دلحن جلي نه ځان ساتل فرض دي .

## ② خفي (پټه غلطي) لحن

لحن خفي هغې غلطۍ ته وايي چې هغه وړه او پټه وي لکه په حرف ((راء)) باندې چې زبر يا پيش راشي نو هغه به مفخمه ( ډکه ) ويل کيږي اوکه دا څوک مرققه

رتښه، ؤايي نو دېته لحن خفي وايي، او په دې باندې ددې فن خاص ماهرين پوهيږي

**د لحن خفي حکم**

دا مکروه دې ليکن له دې څخه هم ځان ساتل ضروري دي.

- **خلاصه** ددې لمعې دا شوه: چې په مخارجو او صفات لازمه کې څه غلطي راشي نو دې ته لحن جلي وايي، او کله چې په يو حرف کې صفات عارضه ادا نشي نو دې ته لحن خفي وايي.

**يادونه**: د تلاوت په وخت کې د هغو عيوبو نه ځان ساتل پکار دي چې دهغو د ادا کولو په وجه تلاوت ته نقصان رسيږي او هغه دادي:

① **ترعيد**: مد او حرکت کې اواز خوځول، مکروه - حرام.

② **تنغيش**: حرکات پوره نه اداء کول، مکروه.

③ **تعجيل**: د تيز والي له کبله حروف د يو بل څخه جدا کول، حرام.

④ **تطنين**: ټول حروف په پوزه کې ادا کول چې دغنې يا د نون اواز پکې وي، حرام.

⑤ **تهميز**: په هر حرف کې همزه اداء کول، حرام.

⑥ **تطويل**: حرکات او مدونه د خپل حد نه زيات راښکل، مکروه.

⑦ **همهمه**: مشدد مخفف او مخفف مشدد اداء کول، حرام.

⑧ **زمزمه**: د سندرو په طرز تلاوت کول اگر که د تجويدد قواعدو موافق وي، حرام.

⑨ **ترقيص**: آواز زنګول کله چې د تجويد نه خلاف وي، حرام.

⑩ **عنعنه**: همزه د عين سره يو ځاى مخلوط اداء کول، حرام.

⑪ **اکزه**: بى ځايه إدغام کول. حرام.

⑫ **تمضیغ**: حروف ژول، مکروه .

⑬ **تعویق**: د کلمې په منځ کې وقف کول او بیا د ما بعد نه شروع کول ، حرام.

⑭ **وثبه**: حروف نیمه کې پرېښودل او مخکې شروع کول یعني تو پونه وهل، حرام .

## محاسن التلاوة

د تلاوت په وخت کې ددې شپږو محاسنو لحاظ پکار دی چې هغه دادي :

① **ترتیل**: چې تلاوت په آرامه او إطمنان سره وکړای شي او د تجوید د قواعدو لحاظ وساتل شي .

② **تجوید**: قراني حروف د خپل مخرج نه د صفات لازمه او عارضه ؤ سره یوځای اداء کول .

③ **تبیین**: هر حرف واضح او صفا اداء کول .

④ **ترسیل**: الفاظ په نرمۍ سره وئیل او حروف پوره اداء کول او د حرف د پټولو او خوړلو نه ځان ساتل .

⑤ **تحسین**: د تجوید سره سره تلاوت په خوش اوازۍ سره کول دعربو د لهجې موافق.

⑥ **توقیر**: په خشوع او خضوع او باوقاره تلاوت کول .

## د تلاوت مراتب

① **ترتیل**:

د تلاوت پر مهال هر توري ته خپل حق ورکول دي چې له آرامه تلاوت کولوڅخه عبارت دی .لکه په جلسو او اجتماعاتو او تعلیم په وخت کې چې کیږي، لکه دا ترتیل امام ورش عاصم او حمزه (رحمهم الله) اختیار کړی دی، او دې ترتیل ته بعضې قراء تحقیق او یا مشق هم وايي.

② **حدر:**

دې ته وايي چې تلاوت زر زر وکړی شي سره د تجويدي احکامو مراعت کولو، لکه په تراويحو کې چې کيږي، او دا حدر امام قالون او ابن کثير او ابو عمرو بصري (رحمهم الله) اختيار کړی دی.

③ **تدوير:**

دې ته وايي چې د ترتيل او د حدر په منځ کې وکړای شي چې نه د ترتيل په شان ډير په ورو وي او نه د حدر په شان ډير زر زر وي لکه په فرضي لمونځونو کې چې کيږي او دا تدوير ابن عامر او کسايي (رحمهما الله) غوره کړی دی.

**نوټ:** په دې درې واړه طريقو کې تطبيق د قواعدو د تجويد ډېر ضروري دی داسې نه چې حروف يو بل کې خلط يا ګډوډ شي يا مقدار کم يا زيات شي يا حرکات مجهول ادا کړای شي نو بيا داسې لوستل جائز نه دي.



Scanned by CamScanner

دريمه لمعه

## د تعوذ (اعوذ بالله) او تسمیې (بسم الله) بیان

څرنګه چې تعوذ او تسمیه د تلاوت نه مخکې ویل کیږي .له دې وجې نه د دې احکام هم د تجوید په نورو احکامو مخکې ذکر کیږي

نو د قران کریم د شروع کولو نه مخکې تعوذ ویل ضروري دي ځکه الله ﷻ فرمائي ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾.

**ژباړه:** کله چې ته اراده د لوستلو د قران کریم وکړې نو پناه وغواړه په الله ﷻ سره د شیطان رټل شوي نه .

د سورت نه مخکې تسمیه ویل ضروري دي .ځکه رسول الله (ﷺ) فرمائي:

"كل امر ذي بال لم يبدأ ببسم الله الرحمن الرحيم فهو اقطع واجزم".

**ژباړه:** هر هغه عظیم الشان کار چې بغیر د بسم الله نه شروع شي نو هغه لنډی بوچی وي یعني بې برکته وي .او تلاوت د قران کریم د ټولو نه لوی عمل دی.

حاصل دا شو چې د تعوذ محل ابتداء د تلاوت شو، او د تسمیې محل ابتداء ، د سورت شو، په دې لحاظ سره ابتداء په درې قسمه ده :

1. د تلاوت شروع د سورت د سر څخه.
2. د تلاوت شروع چی د سورت منځ وی.
3. د سورت شروع چی د تلاوت منځ وی .

- په اول قسم کې یعني ابتداء د تلاوت د سورت د شروع څخه وی په دې کې تعوذ او تسمیه دواړه ویل ضروري دي ځکه د دواړو محل موجود دی .
- په دوهم قسم کې یعني ابتداء د تلاوت چی.د سورت منځ وي په دې کې تعوذ ویل ضروري دې ځکه محل یې موجود دی او د تسمیې وئیلو کې

اختیار دی وئیل او نه وئیل يې دواړه جائز دي لیکن وئیل يې غوره دي تبرکاً

- په دریم قسم کې یعني ابتداء سورت چی د تلاوت منځ وی په دې کې تعوذ وئیل بالکل نشته ، ځکه محل يې نشته او تسمیه وئیل ضروري دي ځکه محل يې موجود دی، او که څېرې په دې دریم قسم کې سورت "براءة" راشي نو بیا پکې درې (۳) وجې جائز دي .

① وصل.

② فصل .

③ سکته .



کلوزمه لمعه

# د حروفو د مخارجو بيان

## مخارج

مخارج جمع د مخرج ده، مخرج په لغت کې : موضع الخروج يعني ځای د وتلو ته وايي.

او په اصطلاح د علم التجويد کې:(هو موضع خروج الحرف) يعني دحرف دوتلو (اداء کولو) ځای ته مخرج وايي.

## حرف

حرف په لغت کې: غاړې او طرف ته وايي.[1]

او په اصطلاح کې: (هو صوت يعتمد على مخرج محقق أو مقدر).

**ژباړه**: هغه انساني آواز چې اعتماد يې په مخرج محقق يا مقدر کيږي.

---

(1) دحرف اقسام: حروف په دوه قسمه دي: (۱) الحروف الأصلية (اصلي حروف) . (۲) الحروف الفرعية (فرعي حروف) .
الحروف الأصلية د هجاء حروفو ته وايي الف نه تر يا پورې. او دېته د هجاء حروف ځکه وايي، چې دا جدا جدا ويل کيږي د حروف مقطعاتو په شان. بل دا چې حروف اصليه هغوحروفو ته وايي چې هغه مستقل بالذات وي او د خپل اصلي مخارجو نه اداء کيږي .
د الحروف الاصلية (اصلي حروفو) قسمونه: حروف اصليه هم په دوه قسمه دي :(۱) حروف المباني. (۲) حروف المعاني.

- حروف المباني د هجاء حروفو ته وايي يعني: (الف، با، تا، ثا) تر (يا) پورې .
- حروف المعاني هغوحروفو ته وايي چې هغه معنی لري. لکه:(ل،من،ال،وغيره).

(۲) الحروف الفرعية (فرعي حروف): تعريف: (اي ما يتردد بين المخرجين).
هغه حروف چې مستقل بالذات نه وي بلکه د دوه اصلي مخارجو نه اداء کيږي .
د إمام حفص (رحمه الله ) په نزد الحروف الفرعية پنځه دي :
1/: همزه مسهله. 2/: لام مفخمه. 3/: الف مما له.
4/: نون مخفاة. 5/: نون مدغم يا ادغام ناقص .

## د مخرج اقسام

مخرج په دوه قسمه دي :

① محقق مخرج. ② مقدر مخرج.

## د محقق مخرج تعريف

(هو : ماله جزء معين من أجزاء الحلق أو اللسان او الشفتين).

محقق مخرج هغه لپاره تاکلې حصه په مرئ، ژبه او شونډو کې وي .

## د مقدر مخرج تعريف

(هو : ما ليس له جزء معين من أجزاء الحلق أو اللسان او الشفتين).

مقدر مخرج لپاره تاکلې حصه په مرئ، ژبه او شونډو کې نه وي .

- محقق مخرج پنځلس دي او مقدر مخرج دوه دي.

## اصول د مخارجو

اصل هغې ځای ته وايي چې په هغې کې د يو نه زيات مخارج وي او دېته مخارج کليه هم وايي او اصول المخارج ورته هم وايي .

## د محقق مخارجو اصول

د محقق مخارجو اصول درې دي:

① الحلق(ستونې). ② اللسان (ژبه). ③ الشفتان (شونډې).

- په حلق کې درې مخارج دي او شپږ حروف ترې اداء کيږي .
- په لسان کې لس مخارج دي او اتلس حروف ترې اداء کيږي .
- او په شفتين کې دوه مخارج دي او څلور حروف ترې اداء کيږي .

او مقدر مخارج دوه دي: ① جوف الفم (دخولې خالي برخه) .

② خيشوم (د پوزې تنکې) .

## د مخارجو تعداد

په تعداد د مخارجو کې د قراءو درې اقوال دي:

1. د امام خلیل ( رحمه الله ) په نزد ټول مخارج اولس (۱۷) دي. او دا قول د محققینو علماؤو دی، لکه إمام جزري وغیره.
2. د امام سیبویه ( رحمه الله ) په نزد ټول مخارج شپاړس (۱۶) دي. ځکه دا د جوف الفم مخرج نه حسابوي.
3. د امام فراء ( رحمه الله ) په نزد ټول مخارج څوارلس (۱۴) دي. ځکه دا د جوف الفم مخرج هم نه حسابوي او د (ن، ل، ر) لپاره یو مخرج حسابوي.

امام خلیل ( رحمه الله ) او سیبویه ( رحمه الله ) د قرب لحاظ ندی کړی نو جدا جدا مخارج یې د (نون، لام، را) لپاره خودلي دي، او امام فراء ( رحمه الله ) د قرب لحاظ کړي دی نو یو مخرج یې ورته خودلي دی.

امام فراء او سیبویه (رحمهم الله) د مده او غیر مده یو مخرج ویلی دی، ځکه دوي وایي چې الف بالکل هوایي دی، او دا یې د همزې سره شامل کړی دی، ځکه چې د الف ابتداء د حلق نه کیږي.

او په واو او یا مده کې معمولي غوندې اعتماد په شونډو او ژبه کیږي ددې وجې نه یې د مده او غیر مده فرق ونکړ، او امام خلیل ( رحمه الله ) د قوت او ضعف لحاظ کړي دی نو یو جدا مخرج یې ورته بیان کړی دی.

## د امام خلیل (رحمه الله) په نزد ټول مخارج اولس (۱۷) دي او هغه دادي

### 1. جوف الفم

د خولې دننه هغه خالي ځای ته وایي چې د خولې یوې خاصې حصې لره پکې دخل وي، او له دې نه حروف مده اداء کیږي.

الف ماقبل مفتوح لکه: قَالَ.

واو ساکن ماقبل مضموم لکه: قُوْلُوا.

یا ساکنه ماقبل حرف مکسور لکه قِيلَ.

او دې ته حروف مده او حروف هوائیه او حروف جوفیه وايي [1]

### ② مخرج: اقصى الحلق

د مرۍ د اخري حصې نه سینې طرف ته، ددې نه (همزه، هاء) اداء کیږي.

### ③ مخرج: وسط الحلق

د مرۍ د مینځ نه (عین، حاء) مهملتین (بې نقطې) اداء کیږي.

### ④ مخرج: ادنى الحلق

د مرۍ د اولې حصې نه خولې طرف ته ددې نه (غین، خاء) معجمتین (د نقطې والا) اداء کیږي.

دې شپږو حروفو ته حروف حلقیه یعني د مرۍ حروف وايي، او دې ته (حروف مظهره) او (بیانیه) هم وايي.

### ⑤ مخرج: اللهاة

د حلقې ژبې سره متصل د ژبې بېخ چې کله پاس تالو سره ولګیږي ددې نه (قاف) اداء کیږي.

### ⑥ مخرج: د قاف د مخرج سره

متصل لږ خولې طرف ته د ژبې بېخ چې کله پاس تالو سره ولګیږي ددې نه (کاف) اداء کیږي او دې دواړو حروفو ته (حروف لهاتیه) او (حروف لهویه) وايي،

---

[1] حروف مده ورته ځکه وايي: چې ددې حروفو په اصل کې صفت مدیت پروت دی چې ددې نه بغیر دا حروف نه اداء کیږي.
حروف هوائیه ورته ځکه وايي: چې ددې حروفو آواز په هواء هواء کې انتها نه رسیږي. لکه امام جزري (رحمه الله) فرمايي:
(وهي حروف مد للهواء تنتهي). ژباړه: د حروف مده آواز په هوا هوا کې انتها نه رسیږي.
حروف جوفیه ورته ځکه وايي: چې دا حروف د جوف یعني د خولې دننه خالي ځای نه اداء کیږي.
د الف او د همزې په منځ کې فرقونه: د الف او د همزې په منځ کې څلور فرقونه دي:
1. الف همیشه لپاره ساکن وي لکه: قَالَ، او په همزه باندې حرکات سکنات راځي لکه: أَلْحَمْدُ.
2. الف په نرمۍ سره اداء کیږي لکه: کَانَ او همزه په سختۍ سره اداء کیږي لکه: كَأَنَّ.
3. الف د کلمې په منځ او اخر کې راځي او د کلمې په اول کې نه راځي لکه: بَصِيرًا کَانَ، او همزه د کلمې په اول منځ او اخر درې واړو کې راځي لکه: اقرأ، يلسما.
4. الف همیشه لپاره په یو شکل کې راځي لکه: قَالَ، او همزه په مختلفو شکلونو سره راځي لکه: اَلحمد، يؤمن، يستهزئ.

یعني د حلقي ژبې حروف ورته وايي.

⑦ **مخرج: وسط اللسان**

یعني د ژبې منځ او پاس تالو نه (ج، ش، ي غیر مده) اداء کیږي یعني یاي لین او یاي متحرکه او دې ته (حروف شجریه) وايي.

- دشجر معنی: ونه ده، یعني ونه هم هر وخت لمده وي او دا حروف چې د کوم ځای نه اداء کیږي یعني د ژبې منځ دغه ځای هم هر وخت لوند وي.

بله وجه داده چې د ژبې منځ ته هم (شَجْر اللسان) وايي په سکون د جیم سره.

**د غاښونو نومونه**

روسته چې کوم مخارج را روان دي نو د هغې عام طور سره تعلق د غاښونو سره دی ددې وجې نه اول د غاښونو نومونه پیژندل ضروري دي چې وروسته بیا په پوهیدلو کې مشکل نه وي، نو د انسان په خوله کې دوه دیرش غاښونه دي او د هغې لپاره شپږ نومونه دي:

① ثنایا. ② رباعیات. ③ انیاب.

④ ضواحك. ⑤ طواحن. ⑥ نواجذ.

- په خوله کې مخامخ څلور غاښونو ته (ثنایا) وايي، دوه پاسنیو ته (ثنایا علیا) او دوه لاندینو ته (ثنایا سفلی) وايي.
- د (ثنایا) په خوا کې څلور غاښونه نور دي یو بره ښي طرف ته یو چپ طرف ته، یو لاندې ښي طرف ته یو چپ طرفته دې ته (رباعیات او قواطع) وايي.
- د رباعیاتو په خوا کې څلور غاښونه دي یو بره ښي طرف ته یو چپ طرف ته، یو لاندې ښي طرف ته یو چپ طرف ته دې ته (انیاب او کواسر) یعني ماتونکي وايي.
- د انیابو په خوا کې څلور غاښونه نور دي یو بره ښي طرف ته یو چپ طرف ته، دوه لاندې یو ښي طرف ته یو چپ طرف ته دې ته (ضواحك) وايي.



Scanned by CamScanner

- بیا د ضواحکو په خوا کې دولس غاښونه نور دي شپږ بره درې ښي طرف ته درې چپ طرف ته، شپږ لاندې درې ښي طرف ته او درې چپ طرف ته دې ته (طواحن) وايي .
- بیا د طواحنو په اخر کې څلور غاښونه دي هغه هم په همدې ترتیب سره دې ته (نواجذ) وايي .
- دې اخري درې واړه ډولونو ته يعني: ضواحک، طواحن، نواجذ، دې ته (اضراس)، يعني ژامه وايي.

## د ژبې مختلفې حصې

د غاښونو د نومونو پیژندلو نه ؤروسته د ژبې د مختلفو حصو نومونه پیژندل هم ضروري دي. نو ژبه په شپږو حصو تقسیمیږي :

① اقصی اللسان. د ژبې بېخ. ② وسط اللسان: د ژبې منځ .
③ حافة اللسان: د ژبې ډډه. ④ طرف اللسان: د ژبې غاړه .
⑤ راس اللسان: دژبې سر . ⑥ ظهر اللسان: د ژبې شاه .بره طرف ته

## ⑧ مخرج: حافة اللسان مع أضراس عليا

د ژبې ډډه چې د اضراس علیا د بېخونو سره ولګیږي ددې نه (ضاد) اداء کیږي، که ښي طرف ته وي او که چپ طرف ته وي، لیکن د چپ طرف نه په اسانه اداء کیږي .

او که د دواړو طرفونو نه وي، لیکن د دواړو طرفونو نه یوځای اداء کول یې ډیر مشکل وي اودې حرف ته حرف (حافیة، حرف ضرسیه او حرف مستطله) او اصعب الحروف او حرف العربیة وايي .

## ⑨ مخرج: طرف اللسان

یعني د ژبې غاړه او لږه حصه د حافة اللسان او د ثنایا، رباعیات، انیاب، ضواحکو د اورو نه لږ شان مائیله تالو طرف ته ددې نه (لام) اداء کیږي .

که ښي طرف نه وي او که چپ طرف نه او که د دواړو طرفونو نه وي . ليکن د ښي طرف نه په اسانه اداء کيږي

**فائده**: حافه په دوه ډوله ده:

① أدنى حافه. ② أقصى حافه.

أدنى حافه: د ژبې هغې حصې ته وايي کومه چې د ضواحکو په مقابله کې وي .

أقصى حافه: د ژبې هغې حصې ته وايي کومه چې د نواجذو په مقابله کې وي .

حاصل دا شو چې په حرف (ضاد) کې أدنى حافه او أقصى حافه دواړه لګيږي او په حرف (لام) کې فقط أدنى حافه لګيږي .

**⑩ مخرج: (نون)**

دا أداء کيږي د ژبې غاړه او د ثنايا رباعيات انياب د اورو نه يعني په دې مخرج کې ضواحک شامل ندي

**⑪ مخرج: (را)**

دا أداء کيږي د ژبې غاړه او لږه حصه د ژبې د شاه نه او د ثنايا رباعيات د اورو نه او دې درې حروفو ته (حروف طرفيه) يعني د ژبې د غاړې حروف، او (حروف ذلقيه يا ذولقيه) ورته هم وايي .

**فائده**: امام خليل او سيبويه رحمهما الله چې د (لام، نون، را) لپاره جدا جدا مخارج بيان کړي دي د هغې وجه دا ده:

د لام او نون په منځ کې د مخرج په اعتبار سره فرق شته دی.

- په لام کې د څلورو غاښونو دخل دی :

① ثنايا. ② رباعيات. ③ انياب. ④ ضواحک، او په نون کې ضواحکو لره دخل نشته د لام په أدا کولو کې ژبه د هغې اورو سره لګيږي کومه چې تالو طرف ته وي، يعني تالو طرف ته مايله وي او په نون کې ژبه د هغې اورو سره لګيږي کومه چې غاښونو طرف ته وي .

## د نون او را په مينځ کې فرق

① د نون په أدا کولو کې ژبه د هغې اورو سره لګيږي کومه چې غاښونو طرف ته وي .

او د حرف راء په أدا کولو کې ژبه د هغې اورو سره لګيږي کومه چې د لام او نون مخرج په منځ کې وي .

② د حرف راء په أدا کولو کې (ظهر لسان) لره دخل شته ، او د نون په أدا کولو کې (ظهر لسان) لره دخل نشته .

**یادګیرنه**: د حرف لام په أدا کولو کې ثنايا، رباعيات، انياب، ضواحک شامل دي او د نون په أدا کولو کې ثنايا، رباعيات، انياب شامل دي او د حرف راء په أدا کولو کې ثنايا، رباعيات شامل دي، په نون کې ضواحک نشته او په حرف راء کې ضواحك او انياب نشته.[1]

### ⑫ مخرج. (طاء، دال، تاء)

دا أداء کيږي د ژبې سر او د ثنايا عليا بېخونو نه او دې حروفو ته (حروف نطعيه) يعنې د ډوغل حروف وايي.

### ⑬ مخرج: (ظاء، ذال، ثاء)

دا أداء کيږي د ژبې سر او د ثنايا علياد دننه کنارو نه يعنې د سرونو نه او دې حروفو ته (حروف لثويه) يعنې د اورو حروف وايي.

او لثويه ورته ځکه وايي چې د دې مخرج اورو ته نژدې دی .

### ⑭ مخرج: (ص، ز، س،)

دا أداء کيږي د ژبې سر او ثنايا سفلی د دننه کنارو نه او لږه حصه د يوځای کيدو د ثنايا عليا نه او دې حروفو ته (حروف صفيريه او حروف اسليه) وايي.

---

[1] ددې مخارجو پوره تحقيق ما په ملخص الفريد في علم التجويد کې کړی دی.

## ⑮ مخرج: (فاء)

دا أداء كيږي د لاندې شونډې خيټه او د ثنايا عليا د كنارو يعنې سرونو نه .

## ⑯ مخرج: (باء، ميم، واو)

غير مده يعنې واو متحركه او واو لين ادا كيږي د دواړو شونډو نه .

- ( باء ) د دواړو شونډو د لمدې حصې نه په سختۍ سره أداء كيږي ددې وجې نه ورته (بحري) حرف وايي.
- ( ميم ) د دواړو شونډو د وچې حصې نه په نرمۍ سره أداء كيږي ددې وجې نه ورته (بري) حرف وايي.
- ( واو ) أداء كيږي د دواړو شونډو نه يعني ددې حرف په أداء كې د شونډو غاړې بندې او منځ يې يوله بلې څخه لرې وي .

دې څلورو حروفو ته (حروف شفويه او حروف شفهيه) وايي، شفويه او شفهيه ورته څكه وايي چې دا د شونډو نه أداء كيږي.

## ⑰ مخرج: د خيشوم

د پوزې د بېخ نه غنه أداء كيږي، غنه په دوه ډوله ده ؛

① غنه اني . ② غنه فرعي يا غنه زماني .

- غنه اني: وخت او اراده نه غواړي په خپله أداء كيږي .
- غنه زماني: وخت او إراده غواړي .

## د غنې فرعي بيان

غنه په لغت كې عبارت ده له: (هو صوت الغزالة اذا ضاعت ولدها) يعنې غنه د هوسۍ هغه آواز ته وايي كوم چې د بچي د ضايع كيدلو په وخت كې راوباسي .

او په اصطلاح كې غنه: (هو صوت يخرج من الخيشوم ولا عمل للسان فيه).

ژباړه: دا يو آواز دی چې راوځي د پوزې نه او په دې كې ژبه داخله نده .

## د غنه فرعي (زماني) قسمونه

غنه زماني په دوه ډوله ده:

① غنه صفتي. ② غنه حرفي.

**غنه صفتي**: دې ته ويل کيږي چې هغه په (ميم، او نون) مشدد کې وي.

**غنه حرفي**: دې ته ويل کيږي چې هغه په نون مخفاة او ميم مخفاة او نون مدغم با ادغام ناقص کې کيږي.

- غنه حرفي هم په دوه ډوله ده:

① غنه مفخمه. ② غنه مرققه.

غنه مفخمه: هر کله چې د نون ساکن او تنوين نه ؤروسته حروف مستعليه راشي نو په دغه نون ساکن او تنوين کې به غنه مفخمه کيږي لکه:

( من قبل، عليماً قديراً).

غنه مرققه: هر کله چې د نون ساکن او تنوين نه ؤروسته حروف مستفله راشي نو په دغه نون ساکن او تنوين کې به غنه مرققه کيږي لکه: (إن كنتم).[1]



[1] ددې نور تحقيق په هداية القاري – او احكام قراءة القرآن الكريم کې کتلی شئ.



Scanned by CamScanner




# د صفاتو بیان

## د صفت تعریف

صفات د صفت جمع ده، او صفت په لغت کې: (ما قام بشيء من المعاني کالعلم والسواد) ته وایي.

یعني هر هغه شی چې په بل څيز پورې نښتی وي او مستقل بذاته نه وي په اعتبار د معنی سره لکه علم د عالم پورې او تور والی په یو شي پورې.

او په اصطلاح کې ویل کیږي: (الصفة هي كيفية عارضة للحرف عند حصوله في المخرج كالهمس والجهر والإخفاء والغنة وغيرها).

ژباړه: دا صفت یو حالت دی چې پیښیږي حروفو ته په وخت د أداکولو ددې حرف د خپل مخرج نه لکه: آواز ښکته کیدل, اواز لوړیدل، أخفاء غنه وغیره.

## د صفاتو اقسام

صفات په دوه ډوله دي: ① صفات لازمه. ② صفات عارضه.

## ① صفات لازمه

چې همیشه په حرف کې لازم او پیوست وي او د حرف نه په هیڅ حالت کې نه جدا کیږي او که دا صفات په یو حرف کې أدا نه شي نو هغه حرف یا ختمیږي او یا په بل حرف سره بدلیږي یا ناقص أداء کیږي یا ترې یو عجمي حرف جوړیږي. او دې ته صفات لازمه، صفات ذاتیه، صفات مقومه او صفات ممیزه وایي.[1]

[1] صفات لازمه ورته ځکه وایي چې دا همیشه په حرف کې لازم او پیوست وي.
صفات ذاتیه ورته ځکه وایي چې دا د حرف ذات سره تعلق ساتي.
صفات مقومه ورته ځکه وایي چې ددې په وجه دا حروف قائم پاتې ولاړ وي.
صفات ممیزه ورته ځکه وایي چې دا جدا وال راولي په هغه حروفو کې چې د هغې حروفو مخرج یو وي.

## ② صفات عارضه

هغه صفاتو ته وايي چې هغه په حرف کې هر وخت لازم نه وي، بلکه کله به په يو حرف کې وي او کله به نه وي او که چېرې دا صفات عارضه په يو حرف کې أدا نشي نو هغه حرف خو ختميږي نه ، بلکه د هغې حرف هغه ښايست او زينت له منځه ځي، له دې وجې نه دې ته (صفات عارضه، صفات مزينه او صفات محسنه او صفات مُحليه يا مَحليه) وايي .

## د صفات عارضه معنی

دا صفات به کله په يو حرف کې وي او کله به نه وي.

صفات مزينه او صفات محسنه او صفات مُحليه ورته ځکه وايي چې دا په حرف کې ښايست اوزينت پيدا کوي او که مَحليه ورته ؤيلی شي په فتحې د ميم سره نو بيا يې دا معنی ده چې دا صفات په خاصو ځايونو کې کارول کيږي او په هر ځای که نه وي.

## د صفات لازمه اقسام

صفات لازمه اولس (۱۷) دي او دا په دوه ډوله دي:

① صفات لازمه متضاده . ② صفات لازمه غير متضاده .

- صفات لازمه متضاده: دې ته وايي چې هغه د يو بل ضد او مقابل وي .
- صفات لازمه غير متضاده: هغه دې چې د يو بل ضد او مقابل نه وي .

## صفات لازمه متضاده اقسام

صفات لازمه متضاده لس (۱۰) دي او هغه دادي:

① همس . ② جهر . ③ شدت . ④ رخوت، توسط .

⑤ استعلاء . ⑥ استفال . ⑦ اطباق. ⑧ انفتاح .

⑨ اذلاق . ⑩ اصمات .



Scanned by CamScanner

- دا لس صفات دي او پنځه جوړې دي

| | |
|---|---|
| اوله جوړه | همس او جهر |
| دوهمه جوړه | شدت، توسط رخوت |
| دريمه جوړه | استعلاء او استفال |
| څلورمه جوړه | اطباق او انفتاح |
| پنځمه جوړه | اذلاق او اصمات. |

په دې هره يوه جوړه کې دا يو صفت د بل صفت ضد او مقابل دی.

## د صفات لازمه غير متضاده اقسام

صفات لازمه غير متضاده اوه(۷) دي او هغه دادي:

① صفير. ② قلقله. ③ لين. ④ انحراف.

⑤ تکرير. ⑥ تفشي. ⑦ استطالت.

صفات لازمه متضاده کې چې کومې دوه دوه جوړې دي نو دا نهه ويشت حروف ددې نه بهر نه دي بلکه څومره چې حروف دي د مقابل صفتونوڅخه به په کی يو نه يو صفت لازماً وي، يعني که په کومو حروفو کې صفت د همس وي نو په باقي حروفو کې به د هغې مقابل صفت جهر لازماً وي، او په صفات لازمه غير متضاده کې دا خبره ضروري نه ده بلکه په يو حرف کې به يو صفت وي او په باقي حروفو کې به نه دغه صفت وي او نه به په کې د هغې ضد او مقابل وي.

لکه په حرف (سين) کې صفت د صفير دی نو په باقي حروفو کې به نه دغه صفت وي او نه به په کې د هغې ضد او مقابل وي.

## صفات لازمه متضاده تفصيل

دي ته صفات ذوات الاضداد هم وايي او تفصيل ئې په لاندې ډول دی:

### ① همس

همس په لغت کې کمزوري او ټيټول د آواز ته وايي.

او په اصطلاح کې دادی چې ددې حروفو ادا کولو په وخت کې آواز په مخرج کې په داسې کمزورۍ سره حصار شي چې ساه به جاري وي او په آواز کې به يو قسم کمزوري او ښکته والی وي او داسې حروف لس (۱۰) دي چې مجموعه يې ده (فحثه شخص سکت).

② جهر

جهر په لغت کې قوت او ښکاره والي ته وايي

او په اصطلاح کې دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې آواز په مخرج کې په داسې قوت سره ودرېږي چې ساه جاري کېدل بند شي او په آواز کې يو قسم قوت او لوړوالی پيدا شي. او د مهموسه نه علاوه باقي ټول حروف مجهوره دي او دا دواړه صفتونه يعني همس او جهر د يو بل ضد او مقابل دي او مجهوره حروف ټول نولس (۱۹) دي چې مجموعه يې داده:

(عظم وزن قارئ ذي غض جد طلب).

**فايده**: په حروف مهموسه کې ساه زياته وي او آواز کم وي او په آواز کې يو قسم کمزوري وي، او په حروف مجهوره کې آواز زيات وي او ساه کمه وي او په آواز کې يو قسم قوت او لوړوالی وي.

③ شدت

شدت په لغت کې سختۍ ته وايي .

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې آواز په مخرج کې په داسې قوت او سختۍ سره ودرېږي چې آواز بند شي او په آواز کې يو قسم سخت والی پيدا شي او دا حروف اته دي چې مجموعه يې ده: (اجد قط بکت).

④ رخوت

رخوت په لغت کې نرمۍ ته وايي .

او په اصطلاح کې: ددې صفت دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې آواز په مخرج کې په داسې کمزورۍ سره ودرېږي چې آواز جاري وي او په آواز کې یو ډول نرمي پیدا شي او د شدیده او متوسطه نه علاوه باقي ټول حروف رخوه دي، او رخوه حروف شپاړس دي چې مجموعه یې ده:

(خذ، غث، حظ، فض، شوص، زي، ساه).

## ⑤ توسط

توسط په لغت کې منځني ته وایي.

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې آواز په مخرج کې نه د شدت په څېر پوره بند وي او نه د رخوت په شان پوره جاري وي بلکه د شدت کامله او رخوت کامله په منځ کې أداء کېږي، یعني په دې حروفو کې شدت ناقصه او رخوت ناقصه وجود لري او دا صفت توسط ځان ته مستقل صفت نه حسابیږي ځکه په دې کې څه صفت شدت دی او څه په کې صفت رخوت دی او داسې حروف پنځه دي چې مجموعه یې ده: (لن عمر).

## د ساه او اواز بندیدلو او جاري کیدلو په اعتبار د حرف قسمونه

د ساه بندیدلو او جاري کیدلو په اعتبار سره حروف په پنځه ډوله دي:

① مهموسه رخوه ،دا حروف اته دي چې مجموعه یې ده: (فحثه شخص س).

② مجهوز شدیده، دا حروف شپږ دي چې مجموعه یې ده: (اجد قطب).

③ مجهوره رخوه، دا حروف هم اته دي چې مجموعه یې ده: (غازي ذو ضظ).

④ مهموسه شدیده ، دا حروف دوه دي چې مجموعه یې ده: (کت).

⑤ مجهوره متوسطه، دا حروف پنځه دي چې مجموعه یې ده: (لن عمر).

**اعتراض**: په حرف کاف او حرف تاء کې د همس د وجې نه ساه جاري وي او د شدت د وجې نه په کې آواز بند شي نو ذهن کې دا شک پیداشې چې څنګه دې په یو حرف کې هم ساه جاري وي او هم دې په کې آواز بند وي؟.



Scanned by CamScanner

**جواب**: په دې دوارو حروفو کې صفت همس ضعیف دی او شدت په کې قوي دی نو د شدت د قوت د وجې نه به په کې آواز بندیږي لیکن د څه اندازې همس د وجې نه به په کې د آواز بندیدلو سره لږه ساه هم جاري وي .

**بله وجه داده**: چې ساه به هغه وخت نه جاري کیده چې ساه او آواز دواړه په یو وخت کې جاری کیدلی یا بندیدلی، لیکن دلته د دوارو وختونه جدا جدا دي ، آواز په اعتبار د ابتداء سره دی او ساه په اعتبار د انتهاء سره ده .

نو د صفت شدت د وجې نه به پکې آواز یکدم بند شي. لیکن د څه اندازې همس د وجې نه به پکې لږه اندازه ساه جاري وي لیکن ساه جاري کیدلو کې دا احتیاط کول پکار دی چې آواز ورسره جاري نشي ،که چیرې آواز ورسره جاري شي نو بیا به دا حروف شدیده نشي بلکه رخوه به شي ، او بل دا چې په اخر کې به یې د (ها) آواز پیدا شي نو غلط به شي.(1)

## (6) استعلاء

استعلاء په لغت کې اوچتوالي ته وایي .

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حروفو د أداء کولو په وخت کې د ژبې بېخ پاس تالو طرف ته پورته کیږي چې ددې وجې نه دا حروف مفخم ویل کیږي.

او داسې حروف اوه (۷) دي چې مجموعه یې ده:(**خص ضغط قظ**).

## (7) استفال

استفال په لغت کې ټیټوالی ته وایي .

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حروفو د أداء کولو په وخت کې د ژبې بېخ پاسني تالو ته نه پورته کیږي. چې ددې وجې نه دا حروف مرقق ویل کیږي او د مستعلیه نه علاوه باقي ټول حروف مستفله دي او دا دواړه صفتونه هم د یو بل ضد او مقابل دي او داسې حروف دوه ویشت (۲۲) دي چې مجموعه یې ده:

---

(1) صفت شدت په دې دوارو حروفو کې په حالت د ابتداء کې ښه ظاهریږي او صفت همس پکې په حالت د انتهاء کې ښه ظاهریږي .



Scanned by CamScanner

(ثبت عز من یجود حرفه اذ سل شکا).

**فایده**:په دې دوه ویشتو حروفو مستفله کې دا خبره باید هیره نشي چې دا درې حروف یعني: (لام، الف، را) دا به کله کله د څه عذر د وجې نه مفخم ویل کیږي، ددې وجې نه دې درې واړه حروفو ته شبه مستعلیه حروف وایي .

(الف) چې کله د مفخم حرف نه ورسته راشي نو دغه الف به مفخم ویل کیږي ددغې مفخم حرف د وجې نه ،

او د (لام) او (را) د تفخیم قواعد به ورسته راځي، إن شاء الله

## 8 اطباق

اطباق په لغت کې پیوستوالی ته وایي .

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې د ژبې منځ پاسني تالو سره پیوست کیږي. چې ددې وجې نه دا حروف مفخم ویل کیږي ځکه په دې حروفو کې هم صفت استعلا دې او هم پکې صفت د اطباق دی .

نو صفت استعلا عام دی او صفت اطباق خاص دی . یعني هر حرف مطبقه مستعلیه دی او هر حرف مستعلیه مطبقه ندی ځکه: (غین، خا، قاف) مستعلیه دي او مطبقه ندي او داسي حروف څلور دي: (طاء، ظاء، صاد، ضاد).

## 9 انفتاح

انفتاح په لغت کې خلاصیدو او پراخیدو ته وایي .

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې د ژبې منځ د پاسني تالو نه جدا وي. چې ددې وجې نه دا حروف باریک ویل کیږي او د مطبقه نه علاوه باقي ټول حروف منفتحه دي او دا دواړه صفتونه هم د یو بل ضد او مقابل دي او منفتحه حروف پنځه ویشت (۲۵) دي چې مجموعه یې ده:

(من اخذ وجد سعة فزکا حق له شرب غیث ).



Scanned by CamScanner

## دتفخیم او ترقیق په اعتبار سره حروف په درې ډوله دي

**① مستعلیه مطبقه**، داسې حروف څلور دي:

(ص، ض، ط، ظ) د صفت استعلا د وجې نه په دې حروفو کې د ژبې بېخ پاس تالو طرف ته پورته کيږي او د صفت اطباق د وجې نه په کې د ژبې منځ پاسني تالو سره پیوست کيږي، او په دې حروفو کې اعلی درجه تفخیم دی.

**② مستعلیه منفتحه**، دا حروف درې دي:

(غ، خ، ق) په دې حروفو کې به د صفت استعلا د وجې نه د ژبې بېخ پاسني تالو طرف ته پورته کيږي لیکن د صفت انفتاح د وجې نه به د ژبې منځ پاس تالو نه جدا وي چې ددې وجې نه په دې حروفو کې تفخیم لږ کم وي او په دې حروفو کې دوهمه درجه تفخیم دی.

**③ مستفله منفتحه**، دا حروف دوه ویشت (۲۲) دي چې مجموعه يې ده:

**(ثبت عز من یجود حرفه اذ سل شکا).**

په دې حروفو کې به د صفت استفال د وجې نه د ژبې بېخ دپاس تالو نه جدا وي او د صفت انفتاح د وجې نه به پکې د ژبې منځ د پاسني تالو نه جدا وي چې ددې وجې نه دا حروف باریک ویل کيږي، بغیر د شبه مستعلیه حروفو نه چې هغه مخکې ذکر شوي دي[1].

---

[1] اعتراض: په حرف (جیم، شین، یاء) کې هم د ژبې منځ پاس تالو طرف ته پورته کيږي دا يې ولې په حروف مطبقه کې ذکر نه کړه؟.
جواب: په دې حروفو کې د ژبې منځ پاسني تالو ته پورته کيږي لیکن دا پورته کېدل په اعتبار د مخرج سره دي نه په اعتبار د صفت سره. بله وجه داده چې په حروف مطبقه کې د ژبې منځ سره د ژبې بېخ هم پاسني تالو ته پورته کيږي او په دې حروفو کې فقط د ژبې منځ پاسني تالو ته پورته کيږي.

بل اعتراض: هغه دا چې په حرف (کاف) کې خو هم د ژبې بېخ پاسني تالو ته پورته کيږي دايې ولې په حروف مستعلیه کې ذکر نه کړه په حرف کاف او حرف قاف کې څه فرق دی؟.

جواب: په دې دوارو حروفو کې دا فرق دی چې په حرف قاف کې د ژبې بېخ پاسني تالو ته پورته کيږي . هم په اعتبار د مخرج سره او هم په اعتبار د صفت سره او په حرف کاف کې د ژبې بېخ پاسني تالو طرف ته پورته کيږي په اعتبار د مخرج سره نه په اعتبار د صفت سره. ځکه د استعلا له تعریف نه دا معلومیږي چې دا حروف به مفخم ویل کيږي او دا تفخیم په حرف قاف کې شته او په حرف کاف کې نشته.

**فایده**: حروف مستعلیه په اعتبار د تفخیم سره په پنځه ډوله دي:

① چې دا حروف مستعلیه مفتوح وي او وروسته ترې الف وي لکه: (قَالَ ، ضَآلِين).

② چې کله دا حروف مستعلیه مفتوح وي او وروسته ترې الف نه وي لکه: (طَبَعَ، صَبَرَ).

③ چې کله دا حروف مستعلیه مضموم وي لکه: (بِضُر، قُوْلُوْ).

④ چې کله دا حروف ساکن وي لکه: (نَخْسِف، يَظْهَرُوْن).

⑤ چې کله دا حروف مکسور وي لکه: (صِرَاطَ، قِيْلَ، تَغِيض).

پورتني اقسام د تفخیم مراتب په شبه مستعلیه حروفو کې هم دي لیکن پنځمه درجه په حالت د کسرې کې دا په شبه مستعلیه حروفو کې نشته ځکه بیا د شبه مستعلیه حروفو تفخیم ختمیږي.

## ⑩ اذلاق

اذلاق په لغت کې ښویدلو ته وایي.

اصطلاح: چې دا حروف د شونډو او د ژبې د کنارو نه په اسانۍ او چټکۍ سره أداء کیږي او داسې حروف شپږ (۶) دي چې مجموعه یې ده: (فر من لب).

په دې حروفو کې چې کوم حروف شفویه دي هغه د شونډو د کنارو نه او کوم چې حروف طرفیه دي هغه د ژبې د کنارو نه په اسانۍ او زر أداء کیږي.

## ⑪ اصمات

اصمات په لغت کې چپ کیدلو یا مضبوطیدلو ته وایي.



Scanned by CamScanner

او په اصطلاح کې :دادی چې دا حروف د خپل مخرج نه په مضبوطی سره اداء کیږي او په اسانی او زر نه اداء کیږي، او د مذلقه نه علاوه باقي ټول حروف مصمته دي.

او دا داوړه صفتونه هم د یو بل ضد او مقابل دي او داسې حروف درویشت (۲۳) دي چې مجموعه یې ده:

(جز غش سا خط صد ثقة إذو عظه یحضك).

## د صفات لازمه غیر متضاده تفصیل

صفات لازمه غیر متضاده اوه(۷) دي هغه دادي:

### 1 صفیر

په لغت کې شپېلۍ ته وایي.

او په اصطلاح کې : دادی چې ددې حروفو د أداء کولو په وخت کې یو تیز آواز د شپیلۍ په څېر اوځي او داسې حروف درې دي: (ص، زا، س) بیا ددې صفت صفیر لپاره درې درجې دي :

- **اعلی درجه**: صفیر په حرف ((صاد)) کې دی د وجې د اطباق او استعلا نه .
- **متوسطه درجه**: صفیر په حرف ((زا)) کې دی د وجې د جهر نه.
- **ادنی درجه**: صفیر په حرف ((سین)) کې دی د وجې د همس نه.

### 2 قلقله

په لغت کې خوزیدو او حرکت ته وایي .

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حروفو د أداء کولو په وخت کې په حالت د سکون کې په مخرج کې یو ډول حرکت او ټکان پیدا کیږي او داسې حروف پنځه دي چې مجموعه یې ده :(قطب جد)

لیکن ددې تعریف نه دا نه معلومیږي چې په حالت د حرکت کې به قلقله نه وي بلکه له دې نه دا معلومیږي چې په حالت د سکون کې به قلقله زیاته وي او په

حالت د حرکت کې به قلقله کمه وي لیکن د قلقلې نه دا حروف نه خالي کیږي، ځکه قلقله ددې حروفو لپاره صفت لازمه دی او صفت لازمه ددې حروفو نه نه جدا کیږي.

**د قلقلې درجې**

د قلقلې د پاره پنځه درجې دي:

1. چې کله دا حروف مشدد او موقوف علیه وي لکه: (بالحقِّ، وتَبَّ).
2. چې کله دا حروف ساکن او موقوف علیه وي لکه: (إن یسرقْ، العقدْ).
3. چې کله دا حروف مشدد او غیر موقوف علیه وي لکه: (الحقُّ مِن ربك).
4. چې کله دا حروف ساکن او غیر موقوف علیه وي لکه: (خلقْنا).
5. چې کله دا حروف متحرک وي لکه: (قُلْ، بَلْ) وغیره.

**د بعضی قراء په نیز د قلقلې لپاره څلور درجې دي**

1. **ادنی قلقله**: په دې حروفو کې په هغه وخت کې کیږي چې کله دا حروف مشدد یا متحرک وي لکه: (الحقُّ من ربك، قُلْ، بَلْ) وغیره.
2. **صغری قلقله**: په دې حروفو کې په هغه وخت کې کیږي چې کله دا حروف ساکن او غیر موقوف علیه وي لکه: (خلقْنا).
3. **وسطی قلقله**: په دې حروفو کې په هغه وخت کې کیږي چې کله دا حروف ساکن او موقوف علیه وي لکه: (إن یسرقْ، العقدْ).
4. **کبری قلقله**: په دې حروفو کې په هغه وخت کې کیږي چې کله دا حروف مشدد او موقوف علیه وي لکه: (بالحقِّ، وتبَّ).

بیا په دې پنځه حروفو کې اعلی درجه قلقله په حرف (قاف) کې ده او په باقي څلورو حروفو کې متوسطه درجه قلقله ده.



Scanned by CamScanner

یعني په حرف (قاف) کې اکمله قلقله ده، او په باقي حروفو کې کامله قلقله ده.[1]

### ③ لین

په لغت کې نرمۍ ته وايي.

او په اصطلاح کې: دادی چې دا حروف د خپل مخرج نه په نرمۍ سره أداء کیږي او که څوک په کې مد کول وغواړي نو کولای شي، او داسي حروف دوه دي:

① واو ساکن ماقبل مفتوح لکه: (خَوْف).

② یاء ساکنه ماقبل مفتوح لکه: (صَیْف).[2]

### ④ انحراف

په لغت کې بیرته ګرځیدلو او میلان کولو ته وايي.

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې په حرف (لام) کې د ژبې کنارې طرف ته میلان کیږي او په حرف (را) کې د ژبې شاه طرف ته او لږه حصه د ژبې کنارې طرف ته یعني د (لام) مخرج طرف ته میلان کیږي. او داسې حروف دوه دي: (لام، را).

### ⑤ تکریر

په لغت کې باربار وېلو ته وايي.

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حرف د أداء کولو په وخت کې په ژبه کې یو دول رپېدل پیدا کیږي. دا صفت فقط په حرف (را) کې موندل کیږي

---

(1) د قلقلې د لازیات تحقیق لپاره هدایة القاري – نهایة القول المفید کتلای شي.

(2) اعتراض: لین نرمی ته وايي او رخوت هم نرمی ته وايي او حروف لینیه بعینه حروف رخوه دي، نو څه وجه ده چې د لین د پاره ئې جدا نوم ذکر کړ، او په رخوت ئې اکتفا ونه کړه؟

جواب: په رخوت کې هغه نرمي ده چې هغه په آواز کې وي او په لین کې هغه نرمي ده چې د هغې نه کیفیت مد پیدا کیږي بیا دا نرمي په دوه دوله ده: ۱: چې جریان الصوت ترې پیدا کیږي. ۲: چې امتداد الصوت ترې پیدا کیږي. نو په رخوت کې اول دول نرمي ده او په لین کې دوهم دول نرمي ده.

او دا مطلب نه دی چې تکرار حقیقي به کیږي بلکه د تکرار حقیقي بچ کیدل پکار دي او مشابهت تکرار جایز دی نوددې کول پکار دي

- د تکرار لپاره درې حالات دي:

① تکرار حقیقي. ② عدم تکرار ③ مشابهت تکرار.

① **تکرار حقیقي**: دې ته وایي چې د یوې (را) په ځای دوه او د دوو(۲) په ځای درې ((را)) ګاني اداء کړی شي.

② **عدم تکرار**: دې ته وایي چې حرف (را) په داسې مضبوطی سره أدا کړی شي چې د تکرار بوی پکې هم نوي.

او دا دواړه صفتونه احترازي (څان ساتل) دي.

③ **مشابهت تکرار**: دې ته وایي چې حرف (را) داسې نرمه اداکړی شي چې دا محسوس شي چې په حرف (را) کې تکرار ترسره شو.

او دا صفت ادایي دی او دلته ترې مراد هم دا مشابهت تکرار دی، عدم تکرار او تکرار حقیقي ترې ندی مراد نو دا کول په کار دي.

## ⑥ تفشي

په لغت کې انتشار او خورېدلو ته وایي.

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حرف د أدا کولو په وخت کې په خوله کې آواز خورېږي لکه (منفوش). په صفت تفشي کې دا احتیاط کول پکار دی چې دژبې سر پورته یا ښکته نه شي څکه په دې سره تفشي مفخمه أدا کېږي نو بیا به دا (ش) مستفله نه شي بلکه مستعلیه به شي نو په دې کې دژبې سر سیده او نیغ پکار دی. دا صفت فقط په حرف (شین) کې موندل کیږي.

## ⑦ استطالت

په لغت کې راښکلو او اوږدولو ته وایي.

او په اصطلاح کې: دادی چې ددې حرف د أدا کولو په وخت کې آواز په خوله کې اوږدیږي یعني اقصی حافه لسان پورې ، یعني څومره چې ددې حرف مخرج اوږد دی نو دومره به آواز ددې په مخرج کې اوږدیږي . دا صفت فقط په حرف (ضاد) کې موندلی شي.

**فایده**: ځیني علماء پنځه صفتونه نور هم بیانوي د صفات لازمه غیر متضاده سره ځکه هغه صفتونه هم د صفات لازمه په څیر د خپلو حروفو نه ، نه جدا کیږي، لیکن د هغې نه موږ فقط دوه ذکر کوو:

① **الخفاء** په لغت کې (الاستتار) یعني پټوالي ته وایي .

او په اصطلاح کې :دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې په آواز کې یوډول پټوالی پیدا کیږي او داسې حروف څلور دي: (حروف مده او حرف هاء) .

په حروف مده کې ځکه خفاء ده/چې ددې مخرج مقدردی، نو ډیر پراخه دي ددې آواز په کې محدود نه دی نو کله چې ترې وروسته همزه متصله یا منفصله راشي نو بیا په کې مد کول په کار دی ځکه همزه قوي ده او حروف مده ضعیف دي داسې نه چې د همزې د قوت دوجې نه څوک دا حروف مده بلکل ختم نه کړي، او په حرف (هاء) کې ځکه خفاء ده چې په دې کې ټول صفات ضعیف دي.

د ټولو نه زیاته خفاء په (الف) کې ده بیا په (یاء) کې او همدارنګه په (واو) کې او په حرف (هاء) کې ده.[1]

② **غنه**: په لغت کې د هوسۍ هغه آواز ته وایي کوم چې د بچي ضایع کیدلو په وخت کې اوباسي .

او په اصطلاح کې : دادی چې ددې حروفو د أدا کولو په وخت کې آواز خیشوم ته خي او داسې حروف دوه دي: (میم او نون) اګر که تنوین هم وي.

---

① فایده: الف کې د واو او (یاء) نه زیاته خفاء ځکه ده چې ددې اعتماد په مخرج محقق بالکل نه وي په خلاف د (واو) او (یاء) باندې ځکه د (واو) او (یاء) معمولي اعتماد په مخارجو اصلیه باندې شته . دزیاتو معلوماتو لپاره ( نهاية القول المفيد ) کتلی شئ.

## صفات په اعتبار دقوت او ضعف سره

صفات په اعتبار دقوت او ضعف سره په دوه ډوله دي

① قوي صفات. ② ضعيف صفات.

- قوي صفات دولس (۱۲) دي او هغه دادي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1 | جهر | 5 | اصمات | 9 | تكرير |
| 2 | شدت | 6 | صفير | 10 | تفشي |
| 3 | استعلاء | 7 | قلقله | 11 | استطالت |
| 4 | اطباق | 8 | انحراف | 12 | غنه |

ليکن په دې قوي صفاتو کې بعضې صفات د ځینې نورو نه قوي دي لکه قلقله په دې ټولو کې قوي صفت دی ، بیا شدت قوي دی

د جهر نه بیا دا دري واړه صفتونه قوي دي د تفشي او صفير نه .

او اطباق د استعلا نه قوي دی او باقي قوي صفات دې پسې دي په قوت کې.

- ضعيف صفات اته (۸) دي او هغه دا دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1 | همس | 4 | استفال | 7 | لين |
| 2 | رخوت | 5 | انفتاح | 8 | خفاء |
| 3 | توسط | 6 | اذلاق | | |

ځيني علماء وايي چې صفات په درې (۳) ډوله دي :

① قوي صفات. ② متوسط صفات. ③ ضعيف صفات.

بيا دا صفت توسط ، اذلاق او اصمات په متوسطه صفاتو کې حسابوي .

## حروف په اعتبار د قوت او ضعف سره

حروف په اعتبار د قوت او ضعف سره په پنځه ډوله دي:

① **اقوی حروف**: هغه دي چې په هغې کې يا ټول قوي صفات وي يا يکې يو ضعيف وي. او داسې حروف څلور دي ، (ط، ظ، ض، ق).

② **قوي حروف**: هغه دي چې په هغې کې قوي صفات زيات وي او ضعيف پکې کم وي ليکن چې د دؤنه کم نوي. او داسې حروف شپږ دي چې مجموعه يې ده (جد صفرز).

③ **متوسط حروف**: هغه دي چې په هغې کې ضعيف صفات او قوي صفات برابر وي او داسې حروف اته(۸) دي چې مجموعه يې ده: (اخذعت کبا).

④ **ضعيف حروف**: هغه دي چې په هغې کې ضعيف صفات زيات وي او قوي صفات پکې کم وي ليکن چې د دوه صفاتو نه کم نه وي. او داسې حروف پنځه دي چې مجموعه يې ده: (شليوس).

⑤ **اضعف حروف**: هغه دي چې په هغې کې قوي صفات بلکل نه وي يا پکې يو قوي او باقي ټول ضعيف وي. او داسې حروف شپږ دي چې مجموعه يې ده. (حَنِثَ فَهُم).[1]

---

[1] دې کې خينې حروف په اعتبار د قوت او ضعف سره دمختکي قواعدو نه خلاف دي. ليکن دا تقسيم د صفاتو ذاتي قوت او ذاتي ضعف پورې تعلق لري. فتدبر!!

# د صفاتو مختصر جدول

| صفات | د حروفو مجموعه | کيفيت | د حروفو تعداد |
|---|---|---|---|
| همس | فحثه شخص سکت | د ساه جاري کېدل آواز کمزوری کېدل | ۱۰ |
| جهر | عظم وزن قاري ذي غض جد طلب | ساه بنديدل او په آواز کي قوت او لوړوالی پيدا کېدل | ۱۹ |
| شدت | اجد قط بکت | آواز بنديدل او په آواز کي سختي پيدا کېدل | ۸ |
| رخوت | خذ غث حظ فض شوص زي ساه | آواز جاري کېدل او په آواز کي نرمي پيدا کېدل | ۱۲ |
| توسط | لن عمر | آواز د شدت او رخوت په منځ کي ادا کول | ۵ |
| استعلاء | خص ضغط قظ | د ژبې بېخ پاسني تالو ته پورته کول، آواز کي تفخيم پيدا کول | ۷ |
| استفال | ثبت عز من يجود حرفه اذ سل شکا | د ژبې بېخ د پاسني تالو نه جدا کول ،آواز کي ترقيق پيدا کول | ۲۲ |
| اطباق | ص، ض، ط، ظ | د ژبې منځ پاسني تالو سره پيوست کول او د ژبې بېخ پاس تالو ته پورته کول | ۴ |
| انفتاح | من اخذ وجد سعة فزکا حق له شرب غيث | د ژبې منځ پاسني تالو نه جدا کول | ۲۵ |
| اذلاق | فر من لب | دا حروف په اسانی او چټکی سره ادا کول | ۲ |
| اصمات | جز غش سا خط صد ثقة اذ وعظه يحضلك | دا حروف په مضبوطی سره ادا کول | ۲۳ |
| صفير | ص ، زا ، س | د شپېلی په څېر او ياهم دمرغی په | ۳ |

| صفات | د حروفو مجموعه | کیفیت | د حروفو تعداد |
|---|---|---|---|
| | | شان آواز پیدا کول | |
| قلقله | قطب جد | آواز په مخرج کې تمبول | ۵ |
| لین | واو یاء ساکنتین ماقبل مفتوح | آواز نرمول په شان د مد | ۲ |
| انحراف | ل ، ر | آواز کې میلان پیدا کول | ۲ |
| تکریر | را | د ژبې سر رپول | ۱ |
| تفشي | ش | په خوله کې آواز خورېدل | ۱ |
| استطالت | ض | آواز اوږدول په مخرج کې | ۱ |
| خفاء | هـ ، و ، ي | پټېدل د حرف د وجې د مخرج د پراخې نه | ۴ |
| غنه | ن ، م | آواز په خیشوم یعني د پوزې په بېخ کې پیدا کول | ۲ |




# د عارضه صفاتو بیان

**تعریف**

صفات عارضه هغه صفاتو ته وایي چې کله به په یو حرف کې وي او کله به نه وي.

کله چې دا صفات عارضه په یو حرف کې ادا نشي ، نو په حرف کې څه ستونزه نه پیدا کیږي بلکه د هغه حرف حسن او زینت له منځه ځي .

**اقسام**

صفات عارضه اولس (۱۷) دي چې په لاندې ډول دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1 | تحقیق | 7 | تفخیم | 13 | اظهار حقیقي |
| 2 | تسهیل | 8 | ترقیق | 14 | اظهار شفوي |
| 3 | ابدال | 9 | ادغام | 15 | اظهار مطلق |
| 4 | حذف | 10 | غنه زماني | 16 | اقلاب |
| 5 | اثبات | 11 | اخفاء حقیقي | 17 | اماله |
| 6 | مدیت | 12 | اخفاء شفوي | | |

**صفات عارضه په پنځه (۵) ډوله دي**

① عارض بالصفة . ② عارض بالحرف .

③ عارض بالوقف . ④ عارض بالحركة .

⑤ عارض بالوصل .



Scanned by CamScanner

① **عارض بالصفة**: هغه ته وايي چې په يوحرف کې صفت عارضه د صفت لازمه د وجې نه پيدا شوی وي، لکه تفخيم صفت عارضه دی دا د صفت لازمه د استعلا د وجې نه پيدا شوی دی .

او ترقيق صفت عارضه دا د صفت لازمه د استفال د وجې نه پيدا شوی دی .

② **عارض بالحرف**: هغه ته وايي چې يو صفت عارضه په يو حرف کې د بل حرف د رامنځته کېدو د وجې نه پيدا شي لکه په نون ساکنة او تنوين کې ادغام د حروف (يرملون) د وجې نه پيدا کېږي .

③ **عارض بالوقف**: هغه دی چې يو صفت عارضه په يو حرف کې د وقف د وجې نه پيدا شي لکه مد عارض وقفي وغيره د وقف د وجې نه پيدا کېږي .

④ **عارض بالحركة**: هغه ته وايي چې په يو حرف کې يو صفت عارضه د حرکت د وجې نه پيدا شي لکه د حرف (را) او لفظ الجلاله، تفخيم او ترقيق د حرکت د وجې نه پيدا کېږي .

⑤ **عارض بالوصل**: هغه ته وايي چې په يو حرف کې يو صفت عارضه د وصل د وجې نه پيدا شوی وي لکه مد منفصل جايز وغيره د وصل د وجي نه پيدا کېږي .

**تفصيل**: دا صفات عارضه د صفات لازمه په شان په ټولو حروفو کې نشي موندلی بلکه دا فقط په اته (۸) حروفو کې موندلی شي چې مجموعه يې ده (اوير ملان) او ددې تفصيل لاندې ذکر کېږي :

- ((همزه)) کې پنځه (۵) صفات عارضه موندلی شي:
  ① تحقيق . ② تسهيل . ③ ابدال . ④ حذف . ⑤ اثبات .
- ((واو)) کې څلور (۴) صفات عارضه موندلی شي:
  ① مديت . ② حذف . ③ اثبات . ④ ادغام .
- ((ياء)) کې هم څلور (۴) صفات عارضه موندلی شي:
  ① مديت . ② حذف . ③ اثبات . ④ ادغام .



Scanned by CamScanner

- «راء» کې درې (۳) صفات عارضه موندلی شي:

① تفخیم. ② ترقیق. ③ ادغام.

- «میم» کې څلور (۴) صفات عارضه موندلی شي:

① غنه زماني. ② ادغام. ③ اخفاء شفوي. ④ اظهار شفوي.

- «لام» کې درې (۳) صفات عارضه موندلی شي:

① تفخیم. ② ترقیق. ③ ادغام.

- «الف» کې شپږ (۶) صفات عارضه موندلی شي.

① مدیت. ② تفخیم. ③ ترقیق.

④ حذف. ⑤ اثبات. ⑥ اماله.

- «نون» کې هم شپږ (۶) صفات عارضه موندلی شي:

① غنه زماني. ② اظهار مطلق. ③ ادغام.

④ اقلاب. ⑤ اخفاء. ⑥ اظهار حلقي یا حقیقي.

## د صفات لازمه او عارضه په منځ کې فرقونه:

د صفات لازمه او عارضه په منځ کې څلور (۴) بنیادي فرقونه:

**اول فرق**: صفات لازمه په ټولو حروفو کې موندلی شي، او صفات عارضه په بعضې حروفو کې موندل کېږي.

**دوهم فرق**: صفات لازمه چې په حرف کې أداء نه شي نو حرف بالکل ختمیږي، او صفات عارضه چې په حرف کې أداء نه شي نو فقط دحرف حسن له منځه ځي.

**دریم فرق**: صفات لازمه چې أداء نه شي نو لحن جلي واقع کېږي، او صفات عارضه چې أدا نه شي نو لحن خفي واقع کېږي.

**څلورم فرق**: صفات لازمه موقوف علی السبب نه وي، او صفات عارضه موقوف علی السبب وی.

اوومه لمعه

## په لفظ (الجلالة) کې د (لام) حرف قواعد

په دې لمعه کې د لفظ الجلاله د لام تفخيم او ترقيق قواعد بيانيږي:

**اوله قاعده**: هر کله چې لفظ (الله) او (اللّٰهم) نه په مخکې حرف باندې زبر يا پېښ راغلی وي نو دغه لفظ (الله) او (اللّٰهم) به مفخم ويل کيږی لکه:

(مِنَ اللهِ، رَفَعَهُ اللهُ، سُبْحَانَكَ اللّٰهم، قَالُوْا اللهُمَّ).

**دوهمه قاعده**: هر کله چې لفظ (الله) او (اللّٰهم) نه په مخکې حرف باندې زېر راشي نو دغه لفظ الله او اللّٰهم به مرقق ويل کيږی لکه:

(بِسْمِ اللهِ، قُلِ اللهُمَّ).

**درېيمه قاعده**: لفظ (اللّٰهم) په تفخيم او ترقيق کې په شان د لفظ (الله) دی ځکه (اللّٰهم) په اصل کې (يا الله) ؤ.

**فايده**: د لفظ (الله) او (اللّٰهم) نه چې علاوه څومره لامونه دي نو په هر حالت کې به هغه مرقق ويل کيږی ځکه اصل په لام کې ترقيق دی لکه: (مَاوَ لَّهُمْ، وَلَا الضالِيْنَ) او اصل په حرف (راء) کې تفخيم دی.

**فايده**

① د تولو نه زيات تفخيم (ډکوالی) په لفظ الجلاله کې دی چې دلالت وکړي په عظمت د لوی شان د الله تعالی.

② بيا تفخيم په حرف (طاء) کې دی.

③ بيا په حرف (صاد) کې دی.

④ بيا په حرف (ضاد) کې دی.

⑤ بيا په حرف (ظاء) کې دی.

⑥ بيا په حرف (قاف) کې دی.

⑦ بيا په حرف (غين) کې دی.

⑧ بيا په حرف (خاء) کې دی.

⑨ او بيا په حرف (راء) کې دی.





Scanned by CamScanner

اتمه لمعه

## د حرف (راء) قواعد

### د مفخمی (راء) حالتونه

حرف (راء) په شپږو (۶) حالاتو کې مفخمه ویل کیږي، چې په لاندې شپږو قاعدو کې بیانیږي:

**اوله قاعده:** هر کله چې په حرف (را) باندې زبر، پیښ یا دوه زبرونه اویا دوه پیښونه راشي اګر که مشدد وي نو په دې ټولو حالاتو کې به حرف (راء) مفخمه ویل کیږي لکه: (رَبك، رُبما، خبيراً، بصيرٌ، ضرَّاء).

**دوهمه قاعده:** هر کله چې حرف (راء) ساکنه وي او د هغې نه په مخکې حرف باندې زبر یا پیښ راشي نو دغه حرف (راء) به مفخمه ویل کیږي لکه: (اَرْسَلْنَا، يُرْسَلُ).

**دریمه قاعده:** هر کله چې حرف (راء) د وقف دوجې نه ساکنه کړی شي او د هغې نه مخکې حرف هم ساکن وي په دې شرط چې یاې ساکنه نه وي او په مخکې حرف باندې زبر یا پیښ راشي نو دغه حرف (راء) به مفخمه اداء کیږي لکه: (القَدْر، العُسْر).

**څلورمه قاعده:** هر کله چې حرف (راء) ساکنه وي او مخکې ترې کسره عارضي وي نو دغه حرف (راء) به هم مفخمه ویل کیږي لکه: (اِرْجِعُوْ، اِرْكَبْ).

**پنځمه قاعده:** هر کله چې حرف (راء) ساکنه وي او مخکې ترې کسره منفصله وي نو دغه حرف (راء) به مفخمه (ډکه) لوستل کیږي لکه: (اَمِ ارْتَابُوْ، رَبِّ ارْجِعُوْن).

**شپږمه قاعده:** هرکله چې حرف (راء) ساکنه وي او مخکې ترې کسره اصلي متصله وي ليکن چې ؤروسته ترې د حروف مستعليه نه يو حرف مفتوح په دغه کلمه کې راغلی وي نو دغه حرف (را) به مفخمه (ډکه) ويل کيږي لکه: (فِرْقَةٍ، قِرْطَاسٍ، مِرْصَاداً، اِرْصَاداً، لَبِالْمِرْصَاد) ددې قاعدې همدا الفاظ په قرآن کريم کې راغلي دي.

**د مرققې (راء) حالتونه**

حرف (راء) به په پنځه (۵) حالاتو کې مرققه اداء کيږي:

① هر کله چې حرف (راء) باند زير راشي نو دغه حرف (را) به مرققه (باريکه) لوستل کيږي اګر که مشدده وي لکه: (رِجَال، الرِّجَال).

② هرکله چې حرف (راء) ساکنه وي او په مخکې حرف باندې کسره اصلي متصله وي خو چې ؤروسته ترې د حروف مستعليه نه يو حرف مفتوح په دغه کلمه کې نه وي راغلی نو دغه حرف (راء) به مرققه (باريکه) ويل کيږي لکه: (اَنْذِرْ، فِرْعَوْن).

③ هرکله چې حرف (راء) د وقف د وجې نه ساکنه شي اومخکې حرف هم ساکن وي او مخکې حرف باندې کسره راشي نودغه حرف (را) به مرققه ويل کيږي: لکه (ذِكْر، بِكْر).

④ هرکله چې حرف (راء) ساکنه شي د وقف د وجې نه او دهغې نه مخکې حرف (ياء) ساکنه وي که مده وي او که لينيه وي نو بيا به دريم حرف ته نشي کتلی بلکه دغه حرف (راء) به مرققه ويل کيږي لکه: (خَيْرٌ، قَدِيْرٌ).

او دا حرف (را) به ښکه مرققه ويلی شي چې حرف (ياء) جوړه ده د دؤ(۲) کسرو نه.

او قانون دادی چې حرف (راء) ساکنه د يوې کسرې نه ؤروسته راشي نو هغه حرف (راء) به مرققه ويل کيږي او که د دوه کسرو نه ؤروسته راشي نو بيا به په طريقه اولی سره مرققه ويل کيږي.

⑤ هركله چې «راء» مماله راشي نو هغه به مرققه ويلی شي او د امام حفص رحمه الله په نزد په ټول قرآن کريم کې «راء» مماله فقط يو ځای کې راغلې ده (مجريها).

**قاعده**: «راء» مرامه به په تفخيم او ترقيق کې د خپل حرکت موافق ويل کيږي او مطلب ددې دادی چې د وقف بالروم په حالت کې به د حرف «راء» د حرکت دريمه حصه ظاهرولی شي اؤقف بالروم په پيښ او زير کې کيږي، او ددې تفصيل به وروسته راځي إن شاء الله تعالی.

**تنبيهات**

**اوله تنبيه**: «را» مشدده به په تفخيم او ترقيق کې د خپل حرکت موافق ويلی شي لکه: (مُسْتَقَرٌّ، الرِّجَال).

**دوهمه تنبيه**: په لفظ د (كُلُّ فِرْقٍ) کې اختلاف دی:

① تفخيم. ② ترقيق.

تفخيم يکې د عامې قاعدې موافق کيږي ځکه چې د «راء» ساکنې څخه وروسته د حروف مستعليه ؤ نه «قاف» راغلی دی. او ترقيق يکې ځکه دی چې «راء» د دوه کسرو په منځ کې واقع شوې ده او کسره تقاضا د ترقيق کوي ، نه د تفخيم.

دويم دا چې دا حرف «راء» چې د کوم حرف مستعليه د وجې نه مفخمه ويلی شي نوهغه په خپله مکسور دی، نو د هغې په تفخيم کې کمی راغلی دی، نو دا د حرف «راء» په تفخيم باندې اثر نشي کولی خو بيا هم تفخيم او ترقيق دواړه جايز دي.

**دريمه تنبيه**:په لفظ د (مِصْرَ او عَيْنَ الْقِطْرِ) په دې کې هم اختلاف دی :

① تفخيم. ② ترقيق.

① ترقيق يکې ځکه دی چې حرف «راء» د وقف د وجې نه ساکنه شوې ده او مخکې حرف هم ساکن دی او مخکې حرف باندې کسره راغلې ده.

② تفخیم پکې ځکه دی چې د حرف «راء» ساکنې نه مخکې د حروف مستعلیه ؤ نه یو حرف راغلی دی .

لیکن په دې دوارو کلماتو کې غوره خبره داده چې په لفظ د «مِصْرَ» کې تفخیم غوره دی د ترقیق نه ځکه د «مِصْرَ» «راء» مفتوحه ده په حالت د وصل کې او په لفظ د (عَيْنَ الْقِطْرِ) کې ترقیق غوره دی د تفخیم نه ځکه د «قِطْرِ» «راء» مکسوره ده په حالت د وصل کې .

په دې دوارو حروفو کې اصل حرکت ته اعتبار دی .

**څلورمه تنبیه**: په لفظ د (وَأَنْذِرْ قَوْمَكَ، وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ، فَاصْبِرْ صَبْرًا) کې هم اختلاف دی :

① تفخیم . ② ترقیق .

① **تفخیم** پکې د عامې قاعدې موافق کېږي ځکه چې د «راء» ساکنې نه وروسته د حروف مستعلیه ؤ نه یو حرف راغلی دی .

② **ترقیق** پکې ځکه دی چې د «راء» ساکنې نه مخکې کسره اصلي متصله راغلې ده او وروسته ترې د حروف مستعلیه نه یو حرف راغلی دی خو جدا په بله کلمه کې دی نو دا د حرف «را» په تفخیم باندې اثر نشي کولی .

**پنځمه تنبیه**: په لفظ د (خَيْرٌ او قَدِيْرٌ) کې به هم په حالت د وقف کې دا «راءات» مرقق ویل کیږي ځکه چې د «راء» ساکنې نه مخکې «یاء» ساکنه راغلې ده.

**شپږمه تنبیه**: په لفظ د (اذَا يَسْرِ) کې هم اختلاف دی :

① تفخیم . ② ترقیق .

① تفخیم پکې ځکه دی چې حرف «را» د وقف د وجې نه ساکنه شوې ده او مخکې حرف هم ساکن دی او په مخکې حرف باندې فتحه راغلې ده .

② ترقیق پکې ځکه دی چې دا په اصل کې (اِذا یسری) ؤ نو بعضې قراء وایي چې دا حرف (را) به مرققه ویلی شي ځکه چې دا دلالت وکړي په حذفیت د (یا) باندې لیکن دا قول ضعیف دی .

## اماله

اماله په لغت کې مایله کېدلو ته وایي .

او په اصطلاح کې زبر ، زیرته، او الف (یاء) ته مایله کولو ته اماله وایي.

## د اماله ډولونه

اماله په دوه (۲) ډوله ده:

① اماله کبری . ② اماله صغری .

### ① اماله کبری

ډېر میلان کول . په داسې طریقې سره چې زبر زیر ته او الف یاء ته مایله شي خو چې د زیر او یاء حصه پکې زیاته وي خو دومره زیاته هم نه وي چې خالص زیر او (یا) ترې جوړه شي او د امام حفص (رحمه الله) په نزد اماله کبری فقط یو ځای کې راغلې ده: (مجریها) چې په اصل کې (مَجْراها) ؤ .

### ② اماله صغری

هغه ده چې زبر زیر ته او الف یاء ته مایله شي خو چې د زبر او الف حصه پکې زیاته وي .

لیکن دومره هم زیاته نه وي چې خالص الف او زبر ترې جوړ شي او د امام حفص رحمه الله په نزد اماله صغری نشته .

## د حرف (راء) مفخم حالات

حرف (راء) په شپږو (۶) حالاتو کې مفخمه ویل کیږي:

① (راء) مضمومه یا مفتوحه لکه: (رُبما، رَبك، خبیرٌ، بصیراً، ضرَّاء) .

② (راء) ساکنه ماقبل مضموم یا مفتوح لکه: (یُرسل، اَرْسَلْنَا) .

③ (راء) ساکنه وقفاً ماقبل ساکن ماقبل ضمه یا فتحه لکه. (العُسْر، القَدْر).

④ (راء) ساکنه ماقبل کسره عارضي لکه. (اِرْجِعُوْ، اِرْکَب).

⑤ (راء) ساکنه ماقبل کسره منفصله لکه: (اَمِ ارْتَابُوا، ربِّ ارْجعون).

⑥ (راء) ساکنه ماقبل کسره متصل ما بعد حرف مستعلیه مفتوح. مثال: فِرْقَه، قِرْطَاس، لَبِالْمِرْصَاد، اِرْصَاداً، مِرْصَاداً.

- د حرف (راء) د ترقیق پنځه (٥) حالات دي او هغه دادي:

① راء مکسوره: (رِجَال، الرِّجَال).

② راء ساکنه ما قبل کسره اصلي متصله چې ما بعد ترې حرف مستعلیه مفتوح په دغه کلمه کې نه وي راغلی: (فِرْعَوْن، انذِرْ).

③ راء ساکنه وقفًا ما قبل ساکن ماقبل مکسور لکه: (ذِکْر، بِکْر).

④ راء ساکنه ماقبل یاءِ ساکنه یا لینیه: (قَدِیْر، خَبِیْر).

⑤ راء مماله لکه: (مجریها).



Scanned by CamScanner



## دميم ساکنه او ميم مشدده بيان

دلته دځلورو صفات عارضه يادونه کيږي:

① غنه زماني. ② ادغام مثلين صغير.

③ اظهار شفوي. ④ اخفاء شفوي.

**اوله قاعده**: هرکله چې (ميم) مشدد راشي نو په هغې کې به غنه په مقدار د يو الف ضرور کېږي لکه: (وامًّا). ①

**دوهمه قاعده**: د (ميم) ساکن لپاره درې (۳) احکام دي:

① اظهار شفوي. ② ادغام مثلين صغير. ③ اخفاء شفوي.

① هرکله چې د (ميم) ساکنه نه وروسته بل (ميم) راشي نو هلته به ادغام مثلين صغير کېږي لکه: (اليكمْ مُرسلون).

② هرکله چې (ميم) ساکنه نه وروسته حرف (با) راشي نو هلته به اخفاء شفوي مع الغنه کېږي لکه: (ومن يعتصمْ بِالله).

③ هرکله چې د (ميم) ساکنه نه وروسته د حرف (باء) او (ميم) نه علاوه د اوه ويشت (۲۷) حروفو نه يو حرف راشي نوهلته به اظهار شفوي کېږي لکه: (امْ حسبت، لکمْ دينکم).

**اوله تنبيه**: ادغام په لغت کې: (ادخال الشئ في الشئ) ته وايي يعني داخلول د يو شي په بل شي کې.

① ديو الف اندازه بنده کونه خلاصول يا خلاصه کونه بندول په عادي حالت کې.

په اصطلاح کې ويلی شي: (هو خلط حرف ساكن بمتحرك بحيث يصيران حرفا واحدا مشددا كالثاني ويتحرك العضو عند ادائهما تحركاً واحداً). دا ادغام ويلی شي داخلول د حرف ساکن په حرف متحرک کې په داسې طريقې سره چې وګرځي دا دواړه حروف يو حرف مشدد په مثل د ثاني او حرکت کوي اندام په وخت د أداء کولو ددغه حروفو کې په حرکت يو سره .

**دوهمه تنبيه**: اخفاء په لغت کې: (الستر) يعني پټولو ته وايي.

په اصطلاح کې ويلی شي: (هو النطق بحرف ساكن عار "أى خال" عن التشديد على صفة بين الإظهار والإدغام مع بقاء الغنة في الحرف الأول).

**ژباړه**: اخفاء تلفظ کول دي په يو حرف ساکن باندې داسې حرف ساکن چې خالي وي د تشديد نه په مابين د اظهار او ادغام کې سره د بقاء دغني نه په حرف اول کې .

**دريمه تنبيه**: اظهار په لغت کې: (البيان) ښکاره کولو ته وايي .

په اصطلاح کې: (هو إخراج كل حرف من مخرجه من غير غنة في الحرف المظهر).

**ژباړه**: اظهار ادا کول دهر حرف دي د خپل مخرج نه ښکاره بغير د غني نه .

**څلورمه تنبيه**: ځيني حفاظ د (با، فا، واو) لپاره يوه قاعده بيانوي او دې ته قاعده د (بوف) وايي او دا دليل بيانوي چې دا حروف ټول شفوي دي نو دا درې واړه يو کېدل په کار دي.[1]

[1] حفاظ په درې (۳) ډوله دي : ۱- اهل الاخفاء . ۲- اهل الاظهار. ۳- اهل التحريک.
اهل الاخفاء: چې د (ميم) ساکنه نه وروسته دا درې واړه حروف راشي نو په دې ټولو کې به اخفاء کېږي .
اهل الاظهار وايي چې په دې ټولو کې به اظهار کېږي .
اهل التحريک وايي چې دې (ميم) ساکنه ته به يو ډول حرکت ورکول شي.
1: نو اول قسم يعني په ټولو کې اخفاء کول دا غلط دي .
2: دوهم قول يعنې په ټولو کې اظهار کول دا ضعيف دي . (جاري ..............................)



Scanned by CamScanner

لسمه لمعه

# د نون ساکنه او نون مشدده او تنوین احکام

دلته د پنځه (۵) صفات عارضه یادونه کیږي:

① غنه زماني. ② اظهار. ③ ادغام. ④ اقلاب. ⑤ إخفاء.

## ① اوله قاعده

هرکله چې نون مشدده راشي نو په هغې کې به غنه په مقدار د یو الف ضرور کېږي په شان د (میم) مشدده لکه: (إِنَّ).

## د نون ساکنه احکام

د نون ساکنه لپاره څلور(۴) احکام دي:

① اظهار. ② ادغام. ③ اقلاب. ④ اخفاء.

## ② دوهمه قاعده

هرکله چې د (نون) ساکنه او تنوین نه وروسته حروف حلقیه راشي نو په دغه (نون) ساکنه او تنوین کې به اظهار حلقي یا اظهار حقیقي کېږي. او داسې حروف شپږ دي: (همزه، هاء، عین، حاء، غین، خاء)لکه: (أَنْعَمْتَ).

## ③ دریمه قاعده

هرکله چې د (نون) ساکنه او تنوین نه وروسته حروف (یرملون) په جدا کلمه کې راشي نو په دغه (نون) ساکنه او تنوین کې به ادغام کېږي.

---

3: او دریم قول یعني حرکت ورکول دا بالکل باطل او غلط دی ځکه دا قاعده د میم نه نده نقل په کتابونو د تجوید کې. اخفا ځکه غلطه ده چې په (باء) کې اخفا صحیح ده لیکن په (واو،فا) کې اخفا صحیح نه ده.

دوهم قول یعني اظهار کول ځکه ضعیف دی چې په واو او فا کې اظهار کول بالکل صحیح دی لیکن په با کې اظهار هم جایز دی لیکن غوره او بهتر نه دی.

او دریم قول ځکه بالکل باطل او غلط دی چې دا حالت د قلقلې په ځېر جوړیږي او د قلقلې لپاره پنځه (۵) حروف دي په (میم) کې قلقله نشته. بله وجه یې دا ده چې (میم) ته پوره حرکت ورکول بالکل ثابت نه دي.

بيا که چيرې د (نون) ساکنه او تنوين نه ؤروسته حروف: (ينمو) په جدا کلمه کې راشي نو په دغه (نون) ساکنه او تنوين کې به ادغام مع الغنه کېږي لکه: (فمنْ يُعمل، حسابا يسيرا).

او که چيرې د (نون) ساکنه او تنوين نه ؤروسته حرف (لام، را) راشي نو په دغه (نون) ساکنه او تنوين کې به ادغام بلا غنه کېږي لکه: (منْ رُبك، منْ لّدنه).

### ④ څلورمه قاعده

اقلاب په لغت کې: (تحويل الشي عن وجه) ته وايي، يعني اړول د يو شي د خپل مخ نه.

په اصطلاح کې ويلی شي: (هو جعل حرفٍ مكان حرفٍ آخر مع مراعات الغنة).

ژباړه: يعني اقلاب ويلی شي ګرځول د يو حرف دي په ځای د بل حرف باندې سره د غنې نه.

يعني هرکله چې د (نون) ساکنه او تنوين نه ؤروسته حرف (باء) راشي نو دغه (نون) ساکنه او تنوين به په (ميم) ساکنه سره بدليږي بغير د ادغام نه او غنه به پکې په مقدار د يو (الف) ضرور کېږي لکه: (من بعد، خبيرا بصيرا) وغيره.

### ⑤ پنځمه قاعده

اخفاء په لغت کې (الستر) يعني پټولو ته وايي.

په اصطلاح کې ويلی شي: (هي حالة متوسطة بين الاظهار والادغام).

دا اخفاء يو حالت دی په مابين د اظهار او ادغام کې، يعني هرکله چې د (نون) ساکنه او تنوين نه ؤروسته د حروف حلقيه او حروف (يرملون) او (باء) او (الف) نه علاوه د پنځلسو(۱۵) حروفو نه يو حرف راشي نو په دغه (نون) ساکنه او تنوين کې به اخفاء حقيقي کېږي لکه: (اِنْ كُنْتُمْ، مِنْ قَبْل).



Scanned by CamScanner

## ⑥ شپږمه قاعده

کله چې د (نون) ساکنه نه وروسته حروف (یرملون) په یوه کلمه کې راشي نو په دغه (نون) ساکنه کې به ادغام نه کېږي، بلکه اظهار به کېږي او دې ته اظهار مطلق او اظهار شاذ وايي. اظهار مطلق ورته ځکه وايي چې ددې لپاره کوم قید نشته لکه: (دنیا، بنیان، صنوان، قنوان).

## د مطلق ادغام ډولونه

مطلق ادغام په دوه (۲) ډوله دی:

① ادغام صغیر. ② ادغام کبیر.

### ① ادغام صغیر

هغه ته وايي چې حرف مدغم د ادغام کولو نه مخکې ساکن وي، د ادغام لپاره نه وي ساکن شوی لکه: (الیکمْ مُرسلُون).

### ② ادغام کبیر

هغه ته وايي چې حرف مدغم د ادغام لپاره ساکن شوی وي د مخکې نه ساکن نه وي لکه: (اَتُحَاجُوْنِّيْ، تَأْمُرُوْنِّيْ، مَکَّنِّي، نِعِمَّا، تَأْمَنَّا) چې په اصل کې: (اتحاجونَنِي، تامرونَنِي، مکنَنِي، نِعْمَمَا، تامنُنَا) ؤ.

په دې لومړنیو څلورو کلماتو کې فقط ادغام کېږي او په پنځم لفظ کې یعني (تأمَنّا) په سورة یوسف کې، په دې کې اظهار او ادغام دواړه جایز دي.

ادغام پکې ادغام مع الاشمام کېږي، او اظهار پکې اظهار مع الروم کېږي.

## د ادغام کبیر شرطونه

د ادغام کبیر لپاره درې (۳) شرطونه دي:

**اول:** چې حرف مدغم او مدغم فیه به دواړه مثلین وي.

**دوهم:** چې دا دواړه به په یوه کلمه کې وي.

**دریم:** چې دا دواړه به متحرکېن وي.

## اقسام د ادغام په اعتبار د وصف او کیفیت

ادغام په اعتبار د وصف او کیفیت سره په دوه(۲) ډوله دی.

① ادغام تام. ② ادغام ناقص.

① **ادغام تام**: هغه ته وایي چې حرف مدغم په مدغم فیه کې په داسې طریقې سره داخل شي چې د حرف مدغم ذات او صفت دواړه ختم شي لکه: (قدْ دَّخَلُوْا، اذْذْهب).

② **ادغام ناقص**: هغه ته وایي چې حرف مدغم په حرف مدغم فیه کې په داسې طریقې سره داخل شي چې د حرف مدغم ذات ختم شي، لیکن صفت یې څه ناڅه باقي پاتې وي لکه: (فمنْ یّعْمل ، منْ وّلي).

## اقسام د ادغام په اعتبار د سبب

ادغام په اعتبار د سبب سره په درې ډوله دی:

① ادغام مثلین.② ادغام متجانسین.③ ادغام متقاربین.

① **ادغام مثلین**: هغه ته وایي چې داسې دوه حروف په یو بل کې مدغم شي چې دواړه حروف بالکل یو شان وي په اعتبار د ذات اوصفت سره لکه دوه دالونه .

مثال: (قدْ دّخلو).

② **ادغام متجانسین**: هغه ته وایي چې داسې دوه حروف په یو بل کې مدغم شي چې دا دواړه حروف په اعتبار د مخرج سره یو وي او په اعتبار د صفاتو کې د یو بل سره څه ناڅه فرق ولري لکه: (تاء) او (طاء) .مثال: (وقالتْ طّائفة).

③ **ادغام متقاربین**: هغه ته وایي چې داسې دوه حروف چې یو بل سره یا په اعتبار د صفت سره یا په اعتبار د مخرج او صفت دواړو سره یو بل ته نږدې نږدې وي لکه: (منْ وّلي، قلْ رّب، منْ لّدنه).

اوس دلته ددې درې خبرو پیژندل ضروري دي، که چېرې له دې درې واړو څخه یوه هم وجود ونلري نو ادغام به نه کېږي :

① شرط ادغام. ② سبب ادغام. ③ عدم موانع ادغام.

① **شرط ادغام**: دې ته وايي چې حرف مدغم به ساکن وي که د مخکې نه ساکن وي لکه په ادغام صغير کې او که د ادغام لپاره ساکن شوی وي لکه په ادغام کبير کې، خو په هر صورت حرف مدغم به ساکن وي.

② **سبب ادغام**: درې (۳) دي:

① تماثل. ② تجانس. ③ تقارب.

په **مثلين** کې سبب ادغام تماثل دی لکه: ﴿واذْكُرْ رَّبك﴾.

په **متجانسين** کې سبب ادغام تجانس دی لکه: ﴿قدْ تَّبين﴾.

په **متقاربين** کې سبب ادغام تقارب دی لکه: ﴿الَم نخلقكُمْ﴾.

③**موانع د ادغام**: دا معنی ده چې کله مانع د ادغام موجود وي نو بيا اګر که سبب ادغام او شرط ادغام موجود وي نو بيا به ادغام نه کېږي.

په متلين کې مانع د ادغام حروف مده دي که چېرې اولنی حرف ساکن حرف مده وي نو بيا به ادغام نه کېږي لکه: ﴿قالُوْ وهم﴾ دلته اګر که صورتاً مثلين دی ليکن حقيقة مثلين نه دی، ځکه چې اولنی حرف ساکن حرف مده دی، او دوهم حرف متحرک دی يعني په ظاهر کې خو دا دواړه حروف هم مثله دي ليکن په حقيقت کې دا دواړه متجانسين دي کومو علماؤ چې.دا مثلين شمېرلي دي لکه امام جزري رحمه الله وغيره نو هغوی ظاهر ته کتلي دي چې په ظاهر کې دوه واؤنه دي فتدبر!!

حروف مده په مثلين کې ځکه مانع دي چې حروف مده تقاضا د راښکلو د حرف کوي، او ادغام تقاضا د نه راښکلو د حرف کوي، ليکن دلته دا خبره پېژندل په کار ده، که چېرې اولنی حرف ساکن واو لين وي نو بيا به ادغام کېږي ځکه حروف لين مانع د ادغام نه دي لکه: ﴿بِما عَصَوْ وَّكانُوا﴾.

ځکه حروف لين د ادغام سره منافي نه دي.

په قرآن کریم کې د (یاي لین) مثال په مثلین کې نشته که چېرې وي نوادغام به شوی وي په متقاربین او متجانسین کې مانع د ادغام حروف حلقیه دي.

یعني که چېرې اولنی حرف ساکن، حرف حلقي وي نو بیا به ادغام نه کېږي نه په حرف حلقي کې لکه: (فاصفح عنهم) او نه علاوه د حرف حلقي نه لکه:

(لا تزغْ قلوبنا).

دلته ځکه ادغام نه کېږي چې په کلمه کې ثقل پیدا کېږي.

که چیرې په مثلین کې اولنی حرف ساکن حرف حلقي ؤ نو بیا به ادغام کېږي، ځکه حروف حلقي چې مانع دی د ادغام لپاره نو هغه په متقاربین او متجانسین کې وي او دا مثلین دی لکه: (تسطعْ عَّلیه، یوجِّهّهُ، مالیهْ هّلك).

## اقسام د ادغام په اعتبار د سبب او کیفیت

ادغام په اعتبار د سبب او کیفیت سره په پنځه (۵) ډوله دی:

① ادغام مثلین تام. ② ادغام متجانسین تام.

③ ادغام متجانسین ناقص. ④ ادغام متقاربین تام

⑤ ادغام متقاربین ناقص.

**فایده**: حروف په دوه ډوله دي:

① حروف قمري. ② حروف شمسي.

**حروف قمري**: څوارلس دي چې مجموعه یې ده: (ابغ حجك وخف عقیمه)

**حروف شمسي**: د څوارلسو قمري حروفو نه علاوه باقي ټول حروف شمسي دي بیا ددې لپاره دوه (۲) ډوله احکام دي:

① ادغام. ② اظهار.

① هر کله چې د (الف لام) تعریفي نه وروسته د قمري حروفو نه کوم حرف راشي نو په دغه (الف لام) تعریفي کې به اظهار کېږي او دې ته اظهار قمري وایي لکه: (الْقمر، الْبیت).

② هر کله چې د (الف لام) تعريفي نه وروسته د شمسي حروفو نه کوم حرف راشي نو په دغه (الف لام) تعريفي کې به ادغام کېږي او دې ته ادغام شمسي وايي لکه: (الشَّمس، النَّار).

**سبب الاظهار**: کله چې د لام التعريف نه وروسته قمري حروف راشي نو اظهار پکې ځکه کېږي چې لام التعريف او حروف قمري د مخرج په لحاظ سره يو بل نه لرې دي، او ددې علامه داده چې د لام التعريف سکون به ښکاره کېدای شي په اظهار قمري کې او تشديد به پرې نه راځي.

**سبب الادغام**: کله چې د لام التعريف نه وروسته حروف شمسي راشي نو په دغه لام کې به ادغام ځکه کېږي چې لام التعريف او حروف شمسي د مخرج په لحاظ سره يو بل ته نږدې دي، نو د لام التعريف نه چې وروسته لام راشي په دې کې به ادغام شمسي مثلين کېږي لکه: (الليل)، او باقي حروف شمسي کې به ادغام شمسي متقاربين کېږي د امام خليل ( رحمه الله ) په نزد.

او نښه يې داده چې په لام التعريف کې به سکون نه وي او په حرف شمسي به شد وي لکه: (الظّالمين).

## د ادغام مثلين مثالونه

## او دا په څوارلسو(۱۴) حروفو کې کېږي

| شماره | حرف مدغم | حرف مدغم فيه | مثالونه | کيفيت |
|---|---|---|---|---|
| 1 | با | با | اذهبْ بِّكتابي | تام |
| 2 | تا | تا | فما ربحتْ تِّجارتهم | تام |
| 3 | د | د | قدْ دَّخلوا | تام |
| 4 | ذ | ذ | اذْ ذَّهب | تام |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 5 | را | را | واذكرْ رَّبك | تام |
| 6 | ع | ع | تسطعْ عَّليه | تام |
| 7 | فا | فا | فلا يسرفْ فِّي القتل | تام |
| 8 | لام | لام | قلْ لَّكم | تام |
| 9 | م | م | إليكمْ مُّرسلون | تام |
| 10 | ن | ن | منْ نَّاصرين | تام |
| 11 | واو | واو | أوْ وَّزنوهم | تام |
| 12 | ك | ك | يدرككُّم | تام |
| 13 | ها | ها | يوجيهُّ | تام |
| 14 | يا | يا | بيَدِيَّ | تام |

## د ادغام متجانسين اوه(۷) حروف او مثالونه

| شماره | حرف مدغم | حرف مدغم فيه | مثالونه | کيفيت |
|---|---|---|---|---|
| 1 | دال | تاء | قدْ تَّبين | تام |
| 2 | تاء | طاء | وقالتْ طَّايفة | تام |
| 3 | طاء | تاء | بسطْتَّ | ناقص |
| 4 | تاء | دال | اثقلتْ دَّعوالله | تام |
| 5 | ثاء | ذال | يلهثْ ذَّلك | تام |
| 6 | ذال | ظاء | اذْ ظَّلموا | تام |
| 7 | باء | ميم | اركبْ مَّعنا | تام |

## ادغام متقاربين اوه(۷) حروف او مثالونه

| شماره | حرف مدغم | حرف مدغم فيه | مثالونه | کيفيت |
|---|---|---|---|---|
| 1 | نون ساکنه او تنوين | لام | مِنْ لَّدنه، مثوىً لَّهم | تام |
| 2 | نون ساکنه او تنوين | راء | مِنْ رَّبك، ثمرةٍ رِّزقا | تام |
| 3 | نون ساکنه او تنوين | واو | مِنْ وَّال، يومئذٍ وَّاهية | ناقص |
| 4 | نون ساکنه او تنوين | ياء | فمَنْ يَّعمل، يومئذٍ يَّصدرالناس | ناقص |
| 5 | لام | راء | قلْ رَّب | تام |
| 6 | نون ساکنه | ميم | مِنْ مَّاء | تام مع الإختلاف |
| 7 | قاف | کاف | الَمْ نَخْلُقكم، په دې کې ادغام تام او ناقص دواړه جايز دي، ليکن غوره پکې ادغام تام دی. | |



Scanned by CamScanner

## د نون ساکنه او تنوین څلور (۴) احکام او دهغې مثالونه

### ① اظهار

د نون ساکنه او تنوین نه چې وروسته حروف حلقي راشي نو په دغه نون ساکنه او تنوین کې به اظهار حلقي کېږي او ددې مثالونه لاندې ذکر کېږي:

| النون الساكنة | | | |
|---|---|---|---|
| حروف حلقي | يوه كلمه | دوه كلمې | تنوين |
| همزه | ينئون | منْ امن | كفواً أحد |
| ها | فلا تنْهر | منْ هاد | سلامٌ هِي |
| عين | الانْعام | منْ علق | واسعٌ عَليم |
| حاء | تنْحتون | منْ حيث | حكيم حَميد |
| غين | فسينْغضون | منْ غِلٍ | ماءٍ غَير آسن |
| خاء | المنْخنقة | منْ خشى | ناراً خَالداً |

### ② ادغام

هر کله چې د نون ساکن او تنوین نه وروسته حروف (ینمو) په جدا کلمه کې راشي نو هلته به ادغام مع الغنه کېږي لکه مثالونه يې لاندې ذکر شوي دي:

| دادغام حروف | نون ساكن | تنوين |
|---|---|---|
| ياء | ومنْ يُطِع الله | وجوهٌ يُومئذ |
| نون | لنْ نُدخلها ابدا | ملكاً نُقاتل |
| ميم | منْ مَّاءٍ دافق | صراطاً مُستقيما |
| واو | منْ وَّاق | ايماناً وَّهم |

او کله چې د نون ساکن او تنوین نه وروسته حروف (لر)
یعني (ل، ر) راشي نو هلته به ادغام بلا غنه کېږي لکه:



Scanned by CamScanner

| دادغام حروف | نون ساكنه | تنوين |
|---|---|---|
| لام | انْ لَّنْ تقول | أنداداً لِّيضلوا |
| راء | منْ رَّسول | بشراً رَّسولاً |

## 3 اقلاب

هر كله چې د نون ساكنه او تنوين نه وروسته حرف (باء) راشي نو هلته به اقلاب مع الغنه كېږي لكه مثالونه يې لاندې ذكر كېږي :

| داقلاب حروف | نون ساكن | | تنوين |
|---|---|---|---|
| باء | من كلمة | من كلمتين | سميعٌ ۢ بصير<br>سميعاً ۢبصيراً<br>مشاءٍ ۢ بنميم |
| | أنبتكم | منْ ۢ بعد | |

## 4 اخفاء

هرکله چې د نون ساکنه او تنوين نه وروسته د حروف حلقي او حروف (يرملون) او حروف (باء) نه علاوه يو حرف راشي نو هلته به اخفاء حقيقي کېږي لکه مثالونه يې په لاندې جدول کې ذکر شوي دي:

| داخفاء حروف | النون الساکنة: يوه کلمه | النون الساکنة: دوه کلمې | تنوين |
|---|---|---|---|
| صاد | فانْصب | منْ صلصال | عملاً صالحا |
| ذال | انْذر | منْ ذکر | عزيزٌ ذوانتقام |
| ثاء | منْثوراً | منْ ثقلت | مطاعٍ ثم امين |
| کاف | منْکم | منْ کان | کراماً کاتبين |
| جيم | انْجيناکم | انْ جاء کم | فصبرٌ جميل |
| شين | انْشره | فمنْ شهد | رسولاً شاهدا |
| قاف | تنْقمون | منْ قبل | عادٍ قوم |
| سين | تنْس | منْ سوء | بشراً سويا |
| دال | انْداداً | ومنْ دخله | قنْوان دانية |
| طاء | ينْطقون | منْ طيبات | کلمةٍ طيبة |
| زاي | انْزل | منْ زکاة | يوميئذٍ زرقا |
| فاء | ينْفقون | منْ فضل الله | لآتيةٌ فاصفح |
| تاء | منْتهون | انْ تصبروا | حليةً تلبسونها |
| ضاد | منْضود | منْ ضريع | قوةٍ ضعفا |
| ظاء | انْظروا | منْ ظهير | قرىً ظاهرة |

## دلام ساكنه احكام

لام ساکنه په پنځه (۵) ډوله دی:

① لام التعريف -لام (ال). ② لام الفعل.

③ لام الحرف. ④ لام الاسم. ⑤ لام الأمر.

① **لام التعريف**: هغه لام ته وايي چې هغه د اصل کلمې نه نه وي، او همزه وصليه به يې په اول کې راځي او دا فقط په اسم داخليږي لکه: (البيت، المدينة) ددې تفصيل مخکې ذکر شوی دی.

② **لام الفعل**: هغه ساکن لام ته وايي چې په فعل کې راځي هغه فعل که ماضي وي، مضارع وي او که امر وي ليکن دا به د کلمې په منځ او اخر کې راځي لکه (الْهاكم، يلْتقطه، يتوكلْ، فاجعلْ).

**حکم**: ددې دادی چې په دې کې به اظهار کېږي مگر کله چې لام ساکنه د کلمې په اخر کې راشي او وروسته ترې حرف لام او راء راشي نو بيا به پکې ادغام کيږي لکه: (يَجعلْ لكم، قلْ رَّب).

**سبب الادغام**: په حرف لام کې سبب تماثل دی او په حرف (راء) کې سبب تقارب دی، په نزد دامام خليل (رحمه الله).

**فايده**: دغه الف لام په اسم کې په دوه(۲) ډوله راځي:

**اول**: چې دغه الف لام د اصل کلمې وي لکه:

(الْسنتكم، الْوانا، الْفافا).

**دويم**: الف لام زايده.

**دا هم په دوه (۲) ډوله دی**

① **الزايدة اللازمة**: هغه الف لام چې زايده وي خو د كلمې نه په هيڅ صورت كې نه جدا كېږي او دا د كلمې اصل ګرځيدلی وي لكه: (الّذي، اللّذان، اللّذين، الّتي، اللّاتي، اللّايي، الْان، الْيسع).

**حكم** ددې دادی كه چېرې په دې كلمه كې ددې الف لام نه وروسته لام راغلی وي نو ادغام به كولی شي لكه: (الّذي، الّتي...) وغيره.

او كه چېرې وروسته ترې بل حرف راغلی وي نو اظهار به كولی شي لكه : (الأن، الْيسع).

② **الزايدة العارضة**: له دې نه مقصد هغه الف لام تعريفي دی چې مخكې يې يادونه شوې چې اظهار قمري يا ادغام شمسي به پكې كېږي.



Scanned by CamScanner

## جدول أحكام اللامات السواكن






Scanned by CamScanner

③ **لام الاسم**: هغه لام ساکنه ته وايي چې د کلمې په اصل کې وي او د کلمې په منځ کې واقع شوی وي لکه: (سلطان) .

**حکم**: ددې دادی چې په دې کې به اظهار کېږي .

④ **لام الحرف**: دا په قرآن کریم کې فقط په دوه (۲) حروفو کې راځي (هلْ، بلْ).

**حکم** ددې دا دی چې که چېرې ؤروسته ترې« لام» او «راء» راشي نو ادغام به کېږي او که چېرې بل حرف راشي نو اظهار به کولی شي لکه: (هلْ لّكم، بلْ رّبكم، هلْ تّرى، بلْ سّولت) لیکن ددې نه (بلْ رّان) کلمه مستثنی ده ځکه په دې کې سکته کېږي چې ددې بحث به په خپل ځای کې راځي «إنشاء الله تعالی»

⑤ **لام الامر**: هغه لام ته وايي چې هغه زاید وي، یعني په اصل کلمه کې نه وي او دا به داخلیږي په فعل مضارع باندې او ددې نه به فعل امر جوړوي لیکن په دې شرط چې مخکې ددغه لام نه (ثم، واو، فاء) راشي.

**حکم** : په دې کې به اظهار کېږي لکه: (ثم لْيقضوا، ولْيوفوا، فلْيمدد).

**فایده**: د تنوین تعریف: (التنوین هي نون ساکنة زایدة تلحق آخر الاسم تثبت لفظاً و وصلاً و تسقط خطا و وقفا ولا تکون للتأکید).

**د نون ساکنه او تنوین په منځ کې فرقونه**

**اول**: نون ساکنه د کلمې په منځ او اخر کې راځي لکه: (ینْقلب، مَنْ).

او تنوین فقط په اخر کې راځي لکه: (خبیراً).

**دوهم**: نون ساکنه په اسم، فعل او حرف ،درې وارو کې راځي لکه: (ینْصر، مَنْ، عَنْ). او تنوین فقط په اسم کې راځي لکه: (جبلٌ).

**دریم**: نون ساکنه په وصل او وقف دواړو کې ویلی شي لکه: (أنْعَمْتَ). او تنوین په وقف کې یا ختمیږي او یا په الف سره بدلیږي لکه: (علیماً، غفورٌ، الیمٍ).



Scanned by CamScanner

بالسمه لمعه

# د مدونو بيان

دلته د يو څو خبرو پيژندل ضروري دي :

① تعريف د مد . ② محل د مد .

③ وجه د خصوصيت ددې حروفو د مديت لپاره .

④ شرط مد . ⑤ سبب مد . ⑥ اقسام مد . ⑦ مقدار مد .

## تعريف د مد

مد په لغت کې مطلق راښکلو ته وايي .

په اصطلاح کې ويلی شي: (هو إطالة الصوت بحرف من حروف المد أو اللين).

يعني راښکل د آواز دي په يو حرف د حروف مده ؤ نه يا د حروف لينيه ؤ نه.

## حروف مده

حروف مده درې (۳) دي: (الف، واو، ياء).

او حروف لين دوه (۲) دي: (واو، ياء) او الف چېرته هم لين نشي راتلی ځکه د الف نه مخکې حرکت نه بدليږي، د الف نه مخکې هميشه لپاره فتحه وي او دغه الف ته الف مده وايي له دې نه علاوه د الف بل صورت نه جوړيږي .

## محل مد

محل مد دوه(۲) دي: ① حروف مده . ② حروف لين .

وجه د خصوصيت ددې حروفو د مديت لپاره :

وجه د خصوصيت ددې حروفو د مديت لپاره داده چې ددې حروفو په ذات کې صفت مديت پروت دی چې بغير ددې نه دا حروف صحيح نه أداء کېږي او په حروف لين کې وجه دا ده چې دا حروف د ډيرې نرمی له وجې نه د حروف مده سره

مشابه شوي دي، ګويا چې دا د حروف مده فرع ده ، نو چې په اصل کې مديت وي نو په فرع کې به هم وي.

**د مد شرط**

شرط مد دوه(۲) دي:

① حروف مده. ② حروف لين.

**د مد سبب**

سبب مد درې (۳) دي:

① همزه. ② سکون. ③ تشديد.

**د مد ډولونه**

مد لومړی په دوه (۲) ډوله دی:

① مد اصلي. ② مد فرعي.

**مد اصلي** هغه ته وايي چې د حروف مده نه ؤروسته سبب مد نه وي راغلی لکه: (قَال، قِيل، قُولوا).

**مد فرعي** هغه ته وايي چې د حروف مده نه ؤروسته سبب مد راغلی وي لکه: (جآء، دآبة، الـۤنَ).

**مقدار د مد اقسام**

مقدار د مد اقسام درې دي: (**طول، توسط، قصر**).

① **طول** معنی ډير رابنکل چې مقدار يې درې يا پنځه الفه وي.

② **توسط** معنی نه ډېر او نه کم رابنکل چې مقدار يې دوه يا درې الفه وي. (په دې مقدارونو کې د قراءو اختلاف شته).

③ **قصر** معنی لږ رابنکل چې مقدار يې يو الف دی په اتفاق د علماؤ سره.

اوس دلته دا خبره ذکر کېږي چې په سبب مد کې همزه او سکون هم دی نو اوس هر يو ددې نه په دوه(۲) ډوله دی

همزه په دوه(۲) قسمه ده :

① همزه متصله . ② همزه منفصله .

## سکون هم په دوه قسمه دی

① سکون لازم . ② سکون عارض .

## مد فرعي په نهه(۹) ډوله دی چې عبارت دي له

① مد متصل واجب . ② مد منفصل جایز .

③ مد لازم کلمي مخفف . ④ مد لازم کلمي مثقل .

⑤ مد لازم حرفي مخفف . ⑥ مد لازم حرفي مثقل .

⑦ مد لازم لین . ⑧ مد عارض وقفي . ⑨ مد لین عارضي .

مخکې ددې خبرې یادونه و شوه چې سبب مد همزه او سکون دی اوس دا تفصیلا ذکر کېږي .

## په همزه کې دوه(۲) ډوله مد کېږي

① مد متصل واجب . ② مد منفصل جایز .

① **مد متصل واجب**: هغې ته وایي چې د حروف مده نه وروسته همزه متصله په یوه کلمه کې راغلی وي لکه:

(جآء، سيئت، ليسوء). او مد متصل ته واجب ځکه وایي چې د ټولو قراءو په نزد باندې دلته مد کول واجب دی .

② **مد منفصل جایز**: هغه ته وایي چې د حروف مده نه وروسته همزه منفصله جدا په بله کلمه کې راغلی وي په داسې طریقې سره چې حروف مده د اولې کلمې په اخر کې راغلی وي او همزه د دوهمې کلمې په اول کې راغلی وي لکه: (قَالُوٓا امنا) او مد منفصل ته جایز ځکه وایي چې د بعضې قراءو په نزد په دې کې مد توسط کېږي او د بعضو قراءو په نزد قصر کېږي لکه امام جزري رحمه الله فرمایي :

والمد لازم و واجب اتی ❖ وجایز و هو وقصر ثبتا

**حکم د مقدار مد**: په دې دوارو مدونو کې توسط دی یعني دوه یا درې الفه ، لیکن په مد منفصل جایز کې قصر هم د ځینو قراءو په نزد جایز دی .

د سبب مد دوهم ډول چې سکون دی دا هم په دوه (۲) قسمه دی :

① سکون لازم . ② سکون عارض .

سکون لازم په اعتبار د سبب مد سره په پنځه (۵) ډوله دی .

① **مد لازم کلمی مخفف** : هغه ته وایي چې د حروف مده نه ورسته په کلمه قرآني کې یو حرف ساکن راغلی وي لکه: (الئن) .

② **مد لازم کلمی مثقل**: هغه ته وایي چې د حروف مده نه وروسته په کلمه قرآني کې یو حرف مشدد راغلی وي لکه: (دآبة، خآصّة) .

③ **مد لازم حرفي مخفف**: هغه ته وایي چې د حروف مده نه وروسته په حروف مقطعاتو کې یو حرف ساکن راغلی وي لکه: (الر) چې په اصل کې : الف لام را ؤ .

④ **مد لازم حرفي مثقل**: هغه ته وایي چې د حروف مده نه وروسته په حروف مقطعاتو کې یو حرف مشدد راغلی وي لکه: (الم) چې په اصل کې (الف لام میم) ؤ .

**حکم** د مقدار مد په دې څلور واړه ډولونو د مد لازم کې طول دی، یعني درې یا پنځه الفه .

⑤ **مد لین لازم**: هغه ته وایي چې د حروف لین نه وروسته په حروف مقطعاتو کې یو حرف ساکن راغلی وي لکه (عین) د سورت مریم او (عین) د سورة شوری .

**حکم د مقدار مد**: په دې کې طول ،توسط، قصر درې واړه جایز دي لیکن غوره پکې اول طول دی توسط پکې فقط جایز دی او قصر پکې نشته .

او په دې مد لين لازم کې طول ښکه غوره دی چې ددې مشابهت راشي هغه ځلورو وارو قسمونو د مد لازم سره ځکه دلته هم سکون لازم دی او په مد لازم کې هم سکون لازم دی.

دوهم ډول چې سکون عارض دی په دې کې هم په اعتبار د مد سره دوه ډوله مد کېږي:

① مد عارض وقفي. ② مد لين عارض.

① **مد عارض وقفي**: هغه ته وايي چې د حروف مده نه وروسته سکون عارض د وقف د وجې نه راغلی وي لکه: (نَسْتَعِيْنْ).

حکم د مقدار مد: په دې کې هم طول، توسط، قصر درې واړه جايز دي، ليکن غوره پکې اول طول دی بيا توسط بيا قصر.

طول پکې ښکه غوره دی چې اصل په حروف مده کې طول دی.

② **مد لين عارض**: هغه ته وايي چې د حروف لين نه وروسته سکون د وقف د وجې نه راغلی وي لکه: ( خَوْفْ، صَيْفْ ).

په دې کې هم طول ، توسط، قصر درې واړه جايز دي ليکن غوره پکې اول قصر دی بيا توسط بيا طول.

قصر پکې ښکه غوره دی چې اصل په حروف لين کې قصر دی.

بل دا چې دلته سبب او شرط دواړه ضعيف دي.

په دې لمعه کې په مختلفو ځايونو کې د حروف مقطعاتو ذکر شوی دی نو دلته د يو څو خبرو پېژندل ضروري دي:

① د حروف مقطعاتو معنی.

② د حروف مقطعاتو تعداد.

③ دا حروف مقطعات د څو سورتونو په اول کې راغلي دي.

④ د حروف مقطعاتو ډولونه.

⑤ د حروف مقطعاتو حكم.

① معنی د حروف مقطعاتو: قطعه، معنی ټکړه ټکړه.

دا حروف هم ټکړه ټکړه يعني جدا جدا ويلی شي.

تعداد د حروف مقطعاتو: دا حروف مقطعات ټول څوارلس (۱۴)دي چې مجموعه يې ده: (كم عسل نقص حي طاهر).

او د نهه ويشت (۲۹) سورتونو په اول کې راغلي دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1 | سورة البقرة | 11 | طه | 21 | الغافر |
| 2 | سورة آل عمران | 12 | الشعراء | 22 | فصلت |
| 3 | الاعراف | 13 | النمل | 23 | الشورى |
| 4 | يونس | 14 | القصص | 24 | الزخرف |
| 5 | هود | 15 | العنكبوت | 25 | الدخان |
| 6 | يوسف | 16 | الروم | 26 | الجاثية |
| 7 | رعد | 17 | لقمان | 27 | الاحقاف |
| 8 | إبراهيم | 18 | السجدة | 28 | ق |
| 9 | الحجر | 19 | يس | 29 | ن |
| 10 | مريم | 20 | ص | | |

## اقسام د حروف مقطعاتو

دا حروف مقطعات په دوه قسمه دي: ① ثنايي. ② ثلاثي.

① **ثنايي**: يعني هغه حروف مقطعات چې دوه حروفو والا وي اودا ډول حروف مقطعات پنځه (۵) دي چې مجموعه يې ده: (حي طهر).

حكم ددې دا دی چې دا به د يو الف په مقدار راښكل كيږي يعني مد اصلي به پكې كيږي.

② **ثلاثي**: يعني هغه حروف مقطعات چې هغه د دري حروفو والا وي او دا ډول حروف مقطعات نهه دي چې مجموعه يې ده (كما عسل نقص).

**ثلاثي حروف په درې (۳) ډوله دي**

① هغه حروف مقطعات چې د منځ حرف یې نه حرف مده وي او نه حرف لین وي لکه: (الف) چې ددې قواعد مخکې ذکر شوي دي په مختلفو ځایونو کې او وروسته به هم راشي ((ان شاء الله تعالى)).

② هغه حروف مقطعات چې د منځ حرف یې حرف لین وي نو حکم ددې مخکې په مد لین لازم کې ذکر شوی دی.

③ هغه حروف مقطعات چې د منځ حرف یي حرف مده وي نو په دې لمعه کې د داسې حروفو نه بحث کېږي چې تفصيلاً بحث یې مخکې ذکر شوی دی.

**اوله فایده**: په دې فایده کې ددې خبرې یادونه کېږي چې د سورت آل عمران په حالت د وصل کې مقدار مد طول او قصر دواړه جایز دي لیکن غوره پکې طول دی او قصر پکې ضعیف دی.

**دوهمه فایده**: مخکې د الف ذکر شوی ؤ نو اصل په الف کې ترقیق دی لیکن له دې نه یو څو ځایونه مستثنی دي:

هرکله چې الف د حروف مستعلیه نه وروسته راشي یا لفظ الجلاله چې کله مفخم وي یعني چې هرکله د مفخم حرف نه وروسته الف راشي نو دغه الف به طبعاً مفخم ویل کېږي.

**دریمه فایده**: په دې فایده کې دمدونو درجې ذکر کېږي په اعتبار د قوت سره:

① اوله درجه د مد لازم ده.

② دوهمه درجه د مد متصل واجب ده.

③ دریمه درجه د مد عارض وقفي ده.

④ څلورمه درجه د مد منفصل جایز ده.

⑤ پنځمه درجه د مد لین لازم ده.

⑥ شپږمه درجه د مد لین عارض ده.



Scanned by CamScanner

**څلورمه فايده:** دې فايده کې دا خبره ذکر کېږي چې په سبب مد کې قوي سبب سکون لازم دی بیا همزه متصله ده بیا سکون عارض دی بیا همزه منفصله ده .

**پنځمه فایده:** کله چې په یوه کلمه باندې دوه ډوله مدونه جمع شي نو اعتبار به قوي مد ته ورکول کیږي نه ضعیف ته . کله چې مدمتصل واجب او مد عارض وقفي جمع شي لکه : (يَشَآءُ، قُرُوْٓء) یا مد لازم او مد عارض وقفي جمع شي لکه (صَوَآفّْ) نو په دې کې طول اتفاقا غوره دی او قصر پکې صحیح نه دی.

ځکه اعتبار به قوي مدته ورکول کیږي ضعیف داعتبار وړ نه دی . البته که چېرې مد متصل واجب او مد عارض وقفي جمع شي نو ددوه سببونو د قوت د وجې نه به په وقف بالاسکان او وقف بالاشمام کې طول کېږي او د وقف بالروم په حالت کې به توسط کېږي .

**فواید متفرقه په بیان د مد کې**

① کله چې مد متصل او مد عارض وقفي یو ځای جمع شي نو طول به کولی شي لکه (جآي، قرُوء).

② **مد منفصل په دوه(۲) ډوله دی:**

① منفصل حقیقي . ② منفصل حکمي .

**منفصل حقیقي:** کله چې د حروف مده نه همزه جدا په بله کلمه کې راشي لکه: (بني آدم).

**منفصل حکمي:** کله چې د همزې نه مخکې یا حرف نداء او هاء التنبیه، او هاء الضمیر راشي لکه: (يآ ايها الذين، هآ انتم، بعبادة ربه أحدا). دلته حروف مده لفظاً ثابت دي او رسماً حذف دي، یعني صورةً متصل دي او حکماً یا حقیقتاً منفصل دي د مقدار تفصیل یې مخکې ذکر شوی دی .

③ **سبب مد په دوه(۲) ډوله دی :**

① سبب لفظي . ② سبب معنوي .

**سبب لفظي**: مخکې ذکر شوی.

**سبب معنوي**: په لفظ الجلاله کې دی، د وجې عظمت د الله ﷻ نه.

④ **د تلاوت په وخت کې** ددې خبرې خیال ساتل ضروري دي چې په مدونو کې مساوات لازمي دی، لکه امام جزري رحمه الله فرمایي: (**واللفظ في نظیره کمثله**).

5. **مد اصلي**: دا سبب نه غواړي او دې ته مد الطبیعي هم وایي.

او د مد اصلي لپاره درې (۳) احوال دي:

① چې حرف مده وقفاً او وصلاً ثابت وي لکه: (**يُنَادُوْنَهُمْ**).

② چې حرف مده وقفاً ثابت وي او وصلاً حذف وي لکه: (**هدیً، قریً**).

③ چې حرف مده وصلاً ثابت وي او وقفاً حذف وي لکه: (**بِعِبادِهِ خبیراً**).

**د مد اصلي نور اقسام**

د مد اصلي نور اقسام هم شته لکه:

① **مد العوض**: هغه ته وایي چې دوه زبرونه د وقف دوجې نه په الف سره بدل شي دا مد عوض دی د فتحتینو نه لکه: (سواءً، حسابًا) او دا به د دوه حرکتونو په اندازه راښکل کیږي.

② **مد التمکین**: کله چې دوه واؤنه او یا دوه یاګانې یو ځای راشي نو اولنی واو مده او یایې مده به صحیح أدا کیږي د وجې د وېرې د ادغام نه لکه: (**قالُوْا وهُمْ، فِيْ يَوْمَيْنِ**).

③ **مد صلة الصغری**: هغه ته وایي چې هغه د واحد مذکر غایب لپاره راځي کله چې ترې مخکې او وروسته دواړه حروف متحرک وي نو په دې هاء ضمیر کې به صلة صغری کیږي لکه: (**قال لَهُ صَاحبه**) او دا په دوه دوله ده:

صلة الصغری، او صلة الکبری.

④ **صلة الکبری:** هغې ته وايي چې هاء ضمير نه وروسته همزه راشي نو بيا به پکې صلة الکبری کېږي لکه:

(وما يضل به الا الفاسقين)، ليکن مد صلة الکبری د مد اصلي له اقسامو څخه نه دی، بلکه دا د مد منفصل جايز له ډولونو څخه دی خو د صلې له وجې مو دلته ورنه يادونه وکړه.

⑤ **مد البدل:** هغه ته وايي چې د حرف مده نه همزه مخکې واقع شوی وي او د حرف مده نه وروسته همزه او سکون نه وي لکه: (ءامنوا، إيمانًا) او دې ته مد بدل ځکه وايي چې حرف مده د همزې په بدل کې راغلی دی غالباً.





Scanned by CamScanner

دپلسمه لمعه

# د همزي بحث

په دې لمعه کې مصنف رحمه الله پنځه (۵) صفات عارضه بيانوي:

① تحقيق. ② تسهيل. ③ ابدال. ④ حذف. ⑤ اثبات.

## د همزې اقسام

همزه په دوه (۲) ډوله ده:

① همزه اصلي. ② همزه زايده.

① **همزه اصلي**: هغه ته وايي چې د (فا، عين، لام) کلمې په مقابله کې وي لکه (أَمَرَ، سَئِلَ، بَدَأَ).

② **همزه زايده**: هغه ته وايي چې د (فا، عين، لام) کلمې په مقابله کې نه وي راغلې لکه: (آمَنَ، اِيْمَانًا).

## د همزه زايده قسمونه

همزه زايده په دوه (۲) ډوله ده:

① همزه قطعي. ② همزه وصلي.

① **همزه قطعي**: هغه ته وايي چې هغه په ابتداء، منځ او اخر کې ثابته وي لکه: (اذا، اَن، اِكرام).

② **همزه وصلي**: هغه ته وايي چې هغه په ابتداء کې ثابته وي او په منځ کې استعمال نه لري لکه: (الْحق).

- په حروفو کې د (ال) همزه يعني د الف لام تعريفي همزه وصلي ده باقي د ټولو حروفو همزې قطعي دي لکه: (اَن، اِن) وغيره.

- د اسماوؤ له جملې څخه په (۷) اسماؤ کې همزه وصلي ده باقي د ټولو اسماؤ همزې قطعي دي او هغه اوه (۷) اسماء دادي :

① اِسم. ② اِبن. ③ اِبنة. ④ اِمرءٌ.

⑤ اِمراة. ⑥ اِثنان. ⑦ اِثنتان مع اثنتين.

- او په افعالو کې هم ټولې همزې وصلي دي ما سوا د باب افعال نه څکه د باب افعال همزه قطعي ده لکه: (اِکرام).

**فايده**: د اجتماع الهمزتين اجمالي دوه صورتونه دي :

① چې دواړه همزې متحرکې وي .

② چې اوله همزه ساکنه وي او دوهمه همزه متحرکه وي .

## تفصيلي صورتونه

تفصيلي صورتونه يې پنځه(۵) دي :

① **تحقيق**: هرکله چې دوه همزتين جمع شي په.داسې طريقې سره چې دواړه همزتين قطعي وي او دواړه متحرک وي لکه : (اَءِلـه، اَءُنزل).

نو حکم ددې دادی چې دا دواړه همزې به تحقيق سره صفا او ښکاره أدا کيږي سره د أدا کولو د صفت شدت او جهر نه ،ليکن له دې نه يو لفظ مستثنی دی: (ءَاعجمي) څکه دلته په دې دوهمه همزه کې تسهيل شوی دی او دا تسهيل پکې واجب دی .

② **تسهيل**: دې ته وايي چې همزه داسې أدا شي چې نه د همزې په شان بالکل سخته وي او نه د الف په څېر بالکل نرمه وي بلکه د الف او د همزې په منځ منځ کې أدا شي لکه : (ءَاعجمي).

هرکله چې دوه همزتين په يوه کلمه کې په داسې طريقې سره جمع شي چې اوله

همزه پکې قطعي مفتوحه وي اودوهمه همزه پکې وصلي مفتوحه وي لکه: (آللّه، آلذکرين، آلين) چې په اصل کې: (ءَ اللّه، ءَ الذکرين، ءَ لين) وو.

نو حکم ددې دادی چې اوله همزه باید په تحقیق سره ؤيل شي او په دوهمه همزه کې تسهیل او ابدال دواړه جایز دي، لیکن غوره پکې ابدال دی ځکه په ابدال سره تغیر تام راځي او حذف پکې صحیح نه دی، ځکه که چېرې دا دوهمه حذف شي نو بیا به التباس راشي په مابین د خبر او انشاء کې لیکن په دې دواړو کلماتو کې په حالت د ابدال کې به مد کېږي او په حالت د تسهیل کې به مد نه کېږي.

③ **حذف**: هر کله چې دوه همزتین جمع شي په یوه کلمه کې په داسې طريقې سره چې اوله همزه پکې قطعي مفتوحه وي او دوهمه همزه پکې وصلي مکسوره وي او داسې کلمات په ټول قرآن کريم کې اوه (۷) راغلي دي:

① اَستکبرت ، سورة ص. ② اَطلع، سورة مريم.

③ اَفترى، سورة سبا. ④ اَصطفى، سورة صافات.

⑤ اَتخذتم، سورة بقره. ⑥ اَستغفرت، سورة المنافقون.

⑦ اَتخذناهم، سورة ص.

چې دا په اصل کې: (ءَاِستکبرت، ءَاِطلع، ءَاِفترى، ءَاِصطفى، ءَاِستغفرت، ءَاِتخذتم، ءَاِتخذنهم) وو.

نو حکم ددې دادی چې اوله همزه به په تحقیق سره ویل کیږي او دوهمه به له منځه ځي ، ځکه ددې په له منځه وړلو سره د بلې کلمې سره هیڅ ډول التباس نه راځي.

④ **ابدال**: هرکله چې دوه همزتين په يوه کلمه کې په داسې طريقې سره جمع شي چې اوله همزه پکې قطعي متحرکه وي او دوهم ساکنه وي لکه (امن، اِيمانا، اُومن).

حکم ددې دادی چې اوله همزه به په تحقيق سره ويل کيږي او دوهمه همزه به د اولې همزې د حرکت موافق په حرف مده سره بدليږي او دا ابدال پکې واجب دی، که چېرې مخکې حرکت د فتحې وؤ نو دوهمه همزه به په الف سره بدليږي لکه: (امن).

او که چېرې مخکې حرکت د ضمې ؤ نو دوهمه همزه به په واو سره بدليږي لکه: (اُومن) او که چېرې مخکې حرکت د کسرې ؤ نو دوهمه همزه به په يا سره بدليږي لکه: (اِيمانا).

⑤ **اثبات**: هرکله چې دوه همزتين په يوه کلمه کې جمع شي په داسې طريقې سره چې اوله همزه پکې وصلي مکسوره وي اودوهمه همزه پکې ساکنه وي لکه: (ائتوني) يا اوله همزه وصلي مضمومه وي او دوهمه همزه ساکنه وي لکه: (اؤتُمِنَ).

نو حکم ددې دا دی که چېرې ابتداء تلاوت د اولې همزې نه وشي نو بيا به دوهمه همزه د اولې همزې د حرکت موافق په حرف مده سره بدليږي او دا ابدال پکې واجب دی لکه: (اِيتُوني، اُوتمن)، او که چېرې ابتدا د مخکې کلمې نه وشي نو بيا به اوله همزه حذف کيږي او دوهمه همزه به په تحقيق سره ؤيل شي لکه: (في السموات ايتوني، الذي ايتمن).

**فايده**: په دې فايده کې لفظ د (بئس الاسم الفسوق) حکم بيانيږي.

## د ويلو طريقې

ددې د ويلو دوه طريقې دي: ① ابتدا. ② وصل.

① **ابتدا**:
په حالت د ابتدا کې به دوهمه همزه حذف کیږي او په اوله همزه کې اختیار دی یعنې حذف او باقي پاتې کېدل یې امکان لري یعنې: (السم الفسوق) ویل هم جایز دي. او (لسم الفسوق) ویل هم جایز دي.

② **وصل**: په حالت د وصل کې به اوله او دوهمه همزه دواړه حذف کیږي ځکه دا دواړه همزتین وصلي دي او همزه وصلي په منځ د کلام کې نه کاریږي.

**فایده**: په دې فایده کې د همزې وصلي د حرکت حکم بیانوي که چېرې د فعل دریم حرف یعنې د عین کلمه باندې ضمه راغلې وي نو همزه وصلي به مضمومه وي لکه: (اُقتُل، اُنصُر)، او که چېرې د فعل دریم حرف یعنې عین کلمه باندې کسره یا فتحه یا ضمه عارضي راغلې وه نوهمزه وصلي به مکسوره وي لکه: (اِسْمَع، اِضرِب، اِتَّقُو).

او په اسماؤ کې همزې وصلي ټولې مکسورې دي لیکن هغه اسم چې د هغې په اول کې الف لام تعریفي راغلی وي نو دغه الف لام تعریفي همزه به مفتوحه وي لکه: (الرجل، البیت).

## همزه په اعتبار د واقع کېدلو سره

همزه په اعتبار د واقع کېدلو سره په درې(۳) ډوله ده:

① همزۂ ابتداییه. ② همزه متوسطه. ③ همزه متطرفه.

همزه ابتداییه همېشه لپاره په خپل شکل لیکل کېږي لکه: (اَمَرَ).

همزه متوسطه او همزه متطرفه به د مقابل حرکت حرف مده په شکل سره لیکل کېږي لکه: (جِیتَ یُؤْمِنُ).

لیکن د امام حفص رحمه الله په نزد د همزې متوسطې او متطرفې کوم تغیر اوتبدیل نه دی نقل شوی او د همزې ابتدایي احکام شته.

نو همزه ابتداییه لومړی په دوه(۲) ډوله ده:

اول: همزة الوصل . دوهم: همزة القطع .

## د همزة القطع اقسام

همزة القطع په دوه(۲) ډوله ده :

① همزة الاصل . ② همزة الاستفهام .

## ① همزة الاصل

چې د کلمې په اصل کې پرته وي، اسم وي که فعل ثلا ثي مجرد وي او که مزید فیه، او دا همزة الاصل په اوه(۷) ډوله ده :

① همزة البناء . ② همزة الجمع . ③ همزة الاعلام .
④ همزة المتکلم . ⑤ همزة باب الافعال ⑥ همزة فعل التفضیل .
⑦ همزة فعل التعجب .

① **همزة البناء**: هغې همزې ته وایي چې د کلمې په اصل کې پرته وي یعني د (فا) کلمې په مقابل کې راغلې وي .

دغه همزة البناء په دوه(۲) ډوله ده :

- د کلمې په اصل کې وي او ددغې کلمې د وضع کېدلو په وخت کې به دا همزه پکې وجود لري او بغیر ددې نه به کلمه ناقصه وي لکه: (اَبٌ، اَخٌ).
- دا چې دغه همزه به د (فا) کلمې مقابل کې راغلې وي او حکم ددې دادی چې دا به وصلاً او وقفاً ثابته وي او نه به حذف کېږي .

② **همزة الجمع**:دې ته وایي چې د جمع صیغو په اول کې راغلې وي لکه: (انعام، ازواج). او دا به هم وقفاً او وصلاً ثابته وي.

③ **همزة الاعلام**: دې ته وایي چې د عجمو د نومونو په اول کې راځي لکه: (ابراهیم، اسماعیل، ابلیس) وغیره دا به هم وقفاً او وصلاً ثابته وي نه به حذف کېږي .

④ **همزة المتکلم**: چې د واحد صیغو په اول کې راځي لکه: (اعلنت، اذهب) او دا به همیشه لپاره مفتوحه وي او په دواړو حالاتو کې به ثابته وي.

⑤ **باب افعال ثلاثي مزید فیه**:

دا په باب افعال باندی مشهور دی: ددې باب د ماضي په ټولو څوارلسو(۱۴) صیغو کې معلوم وي که مجهول او د امر په ټولو صیغو کې چې کومه همزه ده دې ته همزه باب افعال وایي او دا به وقفاً او وصلاً ثابته وي لکه: (اَکرم، اَنزل).

⑥ **همزة افعل التفضیل**: دا د غوره والي لپاره راځي لکه : (اَکبر، اَضل) دې ته اسم التفضیل هم وایي دا به همیشه لپاره مفتوحه وي وقفاً او وصلاً به ثابته وي.

⑦ **همزة فعل التعجب**: هغې همزې ته وایي چې د تعجب ښکاره کولو لپاره کارول کیږي او دې لپاره اهل عربو دا کلمه وضع کړې ده : (ما اَفعله اَفعل به) لکه : (اَبصر به، اَسمع بهم، فما اَصبرهم علی النار) او دا به هم وقفاً او وصلاً ثابته وي او نه به حذف کیږي.

② **همزة الاستفهام**

همزة استفهامیه په جمله خبریه باندې تاثیرکوي او جمله انشاییه اوسوالیه ترې جوړه وي اودا په په لاندې اقسامو سره ده :

① چې همزه استفهامیه په داسې کلمه باندې داخله شي چې د مخکې ذکرشؤ همزو نه په کې یو قسم نه ؤ لکه : ( اَلم ترکیف).

② که چېرې دا همزه استفهامیه په داسې کلمه کې داخله شي چې ذکر شؤ همزو نه پکې کوم یو قسم نه ؤ نو بیا به دا همزة الاستفهام د همزې محذوف الرسم سره لیکل کیږي لکه : (اَءَنذرتهم).

③ که چېرې دا همزة الاستفهام په داسې کلمه داخله شي چې همزه وصلي غير مفتوحه وي يعني فتحه پرې نه وي نو دا همزه استفهام به په خپل شکل سره ليکل کيږي لکه: (اَطلع) چې په اصل کې (اءِطلع) وؤ.

4. که چېرې دا همزة الاستفهام په داسې کلمه داخله شي چې همزه وصلي مفتوحه وي نو بيا به همزة الاستفهام په خپله د الف په شکل سره ليکل کيږي او همزه وصلي به رسماً حذف کيږي او لفظاً به په الف سره بدله شي او يا به پکې تسهيل وشي چې د جملې خبريې او د جملې انشايي تميز وشي لکه: (آلذکرين، آلئن آلله).

● **همزة الوصل** : همزه وصلي هغې ته وايي چې زايده وي، ددې وجې نه به دا وقفاً ثابته وي او وصلاً حذف کېږي، اودا همزه وصلي به دداً وجې نه راوړل کيږي چې په حرف ساکن ابتداء نه کېږي بيا دا همزه وصلي په دوه (۲) ډوله ده :

① همزة الاسم. ② همزة الفعل.

**همزة الاسم** : کلمات عرب په درې (۳) ډوله دي :

① اسم. ② فعل. ③ حرف.

په حرف کې چې کومه همزه ده ، هغې ته همزة البناء ويل کيږي او دا همزه قطعي ده.

په حرف کې (الف لام) تعريفي همزه وصلي ده لکه: (الرجل).

**دوهم**: په اسم کې چې کومه همزه ده هغه زايده ده او وصلي هم ده وصلاً به حذف کيږي لکه : (اِسمٌ اِبنٌ، اِبنَةٌ، اِمرَءٌ، اِمرَءَةٍ، اِثنَانَ، اِثنَتَانِ) او دا همزه به هميشه لپاره مکسوره وي.

**دريم**: همزة الفعل دې ته ويل کېږي چې هغه د ثلا ثي مجرد اود ثلاثي مزيد فيه په امر ، شروع کې راځي نو دا به وصلاً حذف کېږي او وقفاً به ثابته وي بيا که چېرې د فعل د عين باندې فتحه يا کسره او ياهم ضمه عارضي راغلې وي نو

همزه وصلي به مکسوره وي لکه : (اِضْرِبْ، اِفْتَحْ، اِمْشُوْ) که چېرې د عين کلمه باندې ضمه راغلې وه نو همزه وصلي به مضمومه وي لکه : (اُنْظُرْ، اُدْخُلْ) د ثلاثي مجرد امر لکه: (اِضْرِبْ، اِشْرَحْ) مزيد فيه امر لکه : (اِرْجِعُوا، اِعْمَلُوْا) د ثلاثي مزيد لکه : (اِهْتَدى، اِنْفَجَرَتْ).





Scanned by CamScanner



## د وقفونو بیان

وقف په لغت کې (الکف و المنع) یعني مطلق ودریدلو ته وايي.

او په اصطلاح کې عبارت ده له : (هو قطع الصوت مع النفس زمناً واسکان المتحرك ان کان متحرکا).

ژباړه : وقف ویل کیږي بندول د آواز ته سره د ساه نه، او ساکن کول د حرف متحرک دي که چیرې دا متحرک وي.

له دې څخه دې نتیجې ته رسیږو چې په وقف کې دا درې خبرې وپېژنو:

① بندول د آواز . ② بندول د ساه .

③ دمتحرک حرف ساکن کول که چیرې دا متحرک وي .

### وقف په اعتبار د کیفیت

وقف په اعتبار د کیفیت سره په پنځه(٥) ډوله دی :

① وقف بالسکون. ② وقف بالإسکان. ③ وقف بالروم.

④ وقف بالإشمام. ⑤ وقف بالابدال.

① **وقف بالسکون**: هغه ته وايي چې حرف موقوف علیه د مخکې نه ساکن وي او قاري په دغه حرف ساکن باندې وقف وکړي، لکه: (علیهم، منها. متی) اودا فقط په سکون کې کیږي .

② **وقف بالاسکان**: هغه ته وايي چې د وقف لپاره يو متحرک حرف ساکن کړی شي لکه : (العالمينَ، الدينِ، قديرٌ، اليم).

دا وقف په پنځه (٥) ډوله حرکاتو کې کیږي: ( زبر، زیر، پېش دوه پېشه، دوه زیره) .

③ **وقف بالروم**: دې ته وايي چې د وقف په وخت کې د حرکت دريمه حصه ظاهره کړای شي لکه: (القدرِ، فليدعُ).

او دا وقف فقط په (پيش، دوه پېښه، زير، او دوه زيره) کې کېږي.

ليکن د وقف بالروم په حالت کې د تنوين د يو حرکت دريمه حصه ښکاره کېدلی شي، د تنوين دريمه حصه به نشي ښکاره کېدای.

④ **وقف بالاشمام**: دې ته وايي چې حرف به اول ساکن شي او بيا به د هغې حرکت ته په شونډو سره اشاره وشي لکه: (نستعين).

او دا به فقط په پېښ او دوه پېښه کې کېږي.

⑤ **وقف بالابدال**: هغه ته وايي چې يو حرف او دا وقف بالابدال د قاعدي قانون مطابق په بل حرف سره بدل شي لکه: (عليماً، القارعة).

په تا مدوره (ګرده تا) او دوه زبر کې کېږي دوه زبره به په الف سره بدلېږي او تا مدوره (ګرده تا) به په ها سره بدلېږي.

وقف بالروم او وقف بالاشمام په هاى ضمير کې کېږي او په تا مدوره (ګرده) او حرکت عارض کې نه کېږي.

**وقف په اعتبار د محل**

وقف په اعتبار د محل سره په شپږ(۶) دوله دی:

① وقف اتم يا لازم. ② وقف تام. ③ وقف کافي.

④ وقف حسن. ⑤ وقف قبيح. ⑥ وقف اقبح.

① **وقف اتم – يا لازم**: هغه ته وايي چې کلام بالکل مکمل شي که دهغې نه وروسته د ما بعد سره وصل کوي نو معنى بالکل غلطيږي لکه: (والله لا يهدي القوم الظالمين ۞ الذين امنو وهاجروا).

② **وقف تام**: هغه ته وايي چې په يوه داسې کلمه باندې وقف وشي چې د هغې تعلق د ما بعد سره نه لفظاً وي او نه معناً وي لکه (و اولئك هم المفلحون).

③ **وقف کافي**: هغه ته وايي چې په يوه داسې کلمه باندې وقف وشي چې د هغې تعلق د مابعد سره لفظاً نه وي او معناً وي لکه: (يوقنون).

نو حکم ددې دادی چې کله وقف تام او وقف کافي راشي نو د ما بعد نه به شروع کوي، اعاده به نه کوي.

④ **وقف حسن**: هغه ته وايي چې په يوه داسې کلمه باندې وقف وشي چې د هغې د مابعد سره تعلق لفظاً وي او معناً نه وي لکه: (الحمد لله).

ځکه په دې باندې د جملې معنی پوره کېږي، او حکم ددې دادی چې که چېرې وقف حسن د آيت په سر کې راغلی وي نو اعاده به نه کوي، او که چېرې وقف حسن د آيت په منځ کې راغلی وي نو اعاده به کوي.

⑤ **وقف قبيح**: هغه وقف ته وايي چې په يوه داسې کلمه باندې وقف وشي چې د هغې د مابعد سره تعلق لفظي او معنوي دواړه وي لکه په (الحمد) باندې وقف کول حکم ددې دادی که چېرې داسې وقف ترسره شي د ضرورت د وجې نه، نو د ماقبل نه اعاده کول ضروري ده.

⑥ **وقف اقبح**: هغه ته وايي چې په يوه داسې کلمه باندې وقف وشي چې د هغې د مابعد سره تعلق لفظي او معنوي دواړه وي او د وقف د کولو د وجې نه د يوې نامناسبې معنی وهم او شک پيدا کېږي لکه: (وما من اله) باندې وقف وشي او (الا الله) ونه ويل شي ، يا په (لا تقربوا الصلاة) باندې وقف وشي او (وانتم سکری) ونه ويل شي.

حکم ددې دادی چې داسې وقف بالکل غلط دی او که چیرې داسې وقف بې اختیاره د ډیر ضرورت د وجې نه وشي نو اعاده بالکل لازم او ضروري ده

## وقف په اعتبار د قاري او تالي

وقف په اعتبار د قاري او تالي سره په څلور (۴) ډوله دی:

① وقف اختیاري. ② وقف اضطراري.

③ وقف اختباري. ④ وقف انتظاري.

① **وقف اختیاري:** هغه ته وایي چې قاري په خپله خوښه او اختیار باندې په یو ځای وقف وکړي.

② **وقف اضطراري:** هغه وقف ته وایي چې قاري د څه عذر د پېښېدو له وجې نه بې اختیاره وقف وکړي.

③ **وقف اختباري:** هغه وقف ته وایي چې قاري د تعلیم او تعلم په وخت کې په ځای وقف کوي.

④ **وقف انتظاري:** هغه وقف ته وایي چې قاري د قرآن د لوستلو په وخت کې یو روایت ختم کړي او د بل روایت د شروع کولو انتظار کوي یا یو آیت ختم شي او د بل آیت د شروع کولو انتظار کوي.

**قاعده:** کلمه قرآني چې څنګه لیکل شوې ده نو وقف به هم د هغې رسم الخط موافق کیږي ځکه وقف تابع د رسم الخط دی، لیکن ددې قاعدې نه یو څو الفاظ مستثنی دي او دغه الفاظ بیا په دوه (۲) ډوله دي:

① هغه کلمات قرآني چې د هغې په اخر کې الف لیکل شوی وي لیکن دغه الف به په حالت د وقف او وصل دواړو کې نه ویل کیږي او داسې کلمات قرآني نهه (۹) او په لاندې ډول دي:

① اَوْيَعْفُوا -بقرة. ② لِيَرْبُوا -روم. ③ اَنْ تَبُوْءَ ا المایده.

④ لِيَبْلُوَا -محمد. ⑤ تَتْلُوا -رعد. ⑥ نَبْلُوا محمد.

⑦ ندعوا -الكهف. ⑧ ثمودا. په ټول قرآن کې

⑨ قواريرا - په سورت دهر کې

② هغه کلمات قرآني چې د هغې په اخر کې الف وي ليکن دغه الف به په حالت د وصل کې نه ويل کيږي او په حالت د وقف کې به ويل کيږي او هغه کلمات قرآني اوه (۷) دي:

① لكناْ -كهف. ② الرسولا -احزاب. ③ السبيلا -احزاب.

④ الظنونا -احزاب. ⑤ قوارير - اولنی سورت دهر کې.

⑥ سلاسلا – دهر، او په دې سلا سلا کې دا قول هم جايز دی چې په حالت د وقف کې دغه الف ونه ويل شي يعني سلاسل وقف وشي.

⑦ لفظ د (انا) به هم داسې ؤيل شي يعني په حالت د وصل کې به دغه الف نه ويل کيږي او په حالت د وقف کې به ويل کيږي.

**قاعده**: اوس دلته دا خبره ذکر کېږي چې هرکله د حروف مده يا حروف لينو نه وروسته موقوف عليه حرف مفتوح وي لکه: (العالمين).

نو د وقف په لحاظ سره دلته وقف بالاسكان کېږي او په اعتبار د مقدار مد سره په دې کې درې (۳) صورتونه جوړېږي:

• طول • توسط • قصر مع الاسكان او دا درې واړه جايز دي.

**فايده**: هرکله چې موقوف عليه حرف مکسور وي لکه: (الدين) نو په دې کې دوه(۲) ډوله مد کېږي:

① وقف بالاسكان. ② وقف بالروم.

او په اعتبار د مقدار سره په دې کې شپږ(۶) صورتونه جوړېږي:

طول، توسط، قصر مع الاسكان، طول توسط قصر مع الروم، په دې کې څلور جايز دي او دوه ناجايزدي:

- طول توسط قصر مع الاسكان او قصر مع الروم جايز دي، او طول توسط مع الروم ناجايز دي.

**فايده**: هر كله چي موقوف عليه حرف مضموم وي لكه: (نستعينُ) په دې كې درې

(۳) دوله وقف كېږي:

① وقف بالاسكان. ② وقف بالروم. ③ وقف بالاشمام.

او په اعتبار د مقدار سره په دې كې نهه(۹) صورتونه جوړېږي، اوه(۷) صورتونه جايز دي:

طول توسط ، قصر مع الاسكان، طول توسط قصر مع الاشمام، قصر مع الروم، اودوه(۲) صورتونه ناجايز دي، طول توسط مع الروم.

**فايده**: اوقاف معتبره پنځه دي او كله چي په دې باندې وقف وشي نو د ما بعد نه په شروع كوي اعادې ته ضرورت نشته، او هغه اوقاف معتبره دادي:

① آيت. ② م. ③ طا. ④ ج. ⑤ زا.

**فايده**: په دې كې د هاى ضمير په اړه بيان كيږي:

هاى ضمير دې ته وايي چې د منصوب متصل او مجرور متصل ضمير واحد مذكر غايب لپاره راځي ، او دا په اسم، فعل، حرف درې واړو كې راځي او دا په دې پورې متصله وي ،

د فعل مثال لكه: (اكله) د حرف مثال لكه: (انه) د اسم مثال لكه: (قومه) د تجويد په كتابونو كې د هاى ضمير متعلق دوه (۲)احكام بيانيږي:

- هاى ضمير د حركت متعلق.
- د هاى ضمير د صلى او عدم صلى متعلق.

① دهاى ضمير د حركت متعلق: كه چېرې دهاى ضمير نه مخكې ياى ساكنه وي كه مده وي او كه لينيه وي لكه: (فيه، اليه) يا دهاى ضمير نه مخكې كسره وي لكه: (به) نو په دې تولو صورتونو كې به د هاى ضمير حركت كسره وي،

ليکن ددې قاعدې نه دا څلور الفاظ مستثنى دي، او دا پنځه ځايه راغلي دي
چې په دې کې دوه مضموم دي او دوه ساکن دي چې درې ځايه راغلي دي

① وما انسنيه، مضموم په سورت الکهف کې

② عليهُ الله، مضموم په سورت الفتح کې

③ «اَرْجِهْ» ساکن دوه ځايه په سورت شعراء کې «الْقِهْ» ساکن په سورت نمل کې
په لومړنيو دوه کلمو کې های ضمير د عامې قاعدې نه خلاف راغلې ده

**وجه داده** چې د های ضمير اصلي حرکت ضمه ده ځکه په اکثرو ځايونو کې د های ضمير حرکت ضمه ده ددې اکثريت د موافقت د وجې نه دلته هم د های ضمير حرکت ضمه راغلي ده او «الْقِهْ» او «اَرْجِهْ» چې په اصل کې «الْقِيْهِ، ارْجِيْهِ» ؤ په دې دواړو کلمو کې د امر د وجې نه يا حذف شوې ده او پرځاى يې های ساکنه قايمه شوه او «وَيَتَّقْهْ» په سورة نور کې په روايت د امام حفص رحمه الله کې دلته قاف ساکن دی ځکه دا په اصل کې «وَيتقِيْهِ» ؤ او دا ياى ځکه حذف شوه چې دا په محل د شرط کې واقع شوې ده او قاف تخفيفاً ساکن شو ځکه دلته د اصل په اعتبار سره های ضمير مکسوره وګرځېده .
خلاصه دا چې د های ضمير همدا دواړه حرکتونه دي : پيش، او زير

- دهای ضمير د صلې او عدم صلې متعلق

که چېرې د های ضمير نه مخکې يا وروسته دواړه حروف متحرک وي نو صله به کېږي په دغه های ضمير کې
بيا که چېرې های ضمير مضموم وي نو صله به په واو سره کېږي، او که چېرې های ضمير مکسور وي نو صله به په يا سره کېږي «اَمْرُهُ اِلَى الله» دلته صله په واو سره شوې ده «به اَمِنًا» او دلته صله په يا سره شوې ده

لیکن په لفظ د (یرضَهُ لَکم) په دې کې صله نه ده شوې ځکه دا په اصل کې (یرضاه لکم) ؤ نو د های ضمیر نه مخکې الف راغلی دی، نو د اصل په اعتبار سره دلته د های ضمیر نه مخکې حرف ساکن راغلی دی نو دا صل د وجې نه صله ونشوه.

که چېرې د های ضمیر نه ماقبل یا ما بعد یا دواړه حروف ساکن وي،نو بیا به پکې صله نه کېږي لکه: (مِنْهُ الماء، یعلمُهُ الکتاب، فیهِ ابدا) لیکن په لفظ د (فیه مهانا) په دې کې صله شوې ده.

**وجه داده**: ځرنګه چې یو لغت کې د های ضمیر نه ماقبل یا مابعد حروف متحرک وي نو صله به کېږي،

همدا رنګه دا هم یو لغت دی چې هرکله د های ضمیر نه مخکې حرف ساکن وي نو صله به پکې کېږي لکه په قراءت سبعه کې د عبدالله بن کثیر قراءت ددې لغت موافق دی.

نو امام حفص رحمه الله په دې کلمه کې جمعا بین اللغتین کړي دي، یعني په خپل روایت کې یې ددوه لغتونو یا روایتونو د جمع کېدلو له وجې صله کړې ده، داسې مثالونه د امام حفص رحمه الله په روایت کې نور هم شته لکه: (اءعجمي) په دوهمه همزه کې تسهیل شوی دی او په (مجریها) کې اماله کول، دا مثالونه هم د جمعا بین اللغتین دي.

**فایده**: وقف اختیاري په څلور (۴) ډوله دي:

① وقف تام. ② وقف کافي. ③ وقف حسن. ④ وقف قبیح.

په دې اړه دلا ډېرو معلوماتو دترلاسه کولو لپاره دا کتابونه کتلای شئ:

① هدایة القاري،② التبیین،③ هدایة الساري،④ احکام قراءة القرآن،⑤ الجامع، ⑥ العمید، ⑦ التمهید، وغیره.



# د متفرقه قواعدو بحث

دلته د یو څو مهمو مسایلو یادول چې د قاري لپاره لازمي او ضروري دي.

**اوله قاعده**: په قرآن کریم کې څلور(۴) الفاظ داسې دي چې په هغې کې به ادغام ناقص کېږي او هغه دادي:

لئن بسطت – المایده. احطت – النمل.

فرطتم – یوسف. فرطت – الزمر.

یعني په دې کې به حرف (طاء) په حرف (تاء) کې مدغمه شي او حرف (طاء) به سره د صفت استعلا او اطباق نه بغیر د قلقلې نه مفخمه أداء شي او حرف (تاء) به باریکه أدا شي.

او په لفظ د (الم نخلقکم) په دې کې هم ادغام تام او ناقص دواړه جایز دي لیکن غوره پکې ادغام تام دی.

**دوهمه قاعده**: په (نون والقلم ، یس والقرآن الحکیم) کې هم د نون ساکن نه وروسته حروف یرملون راغلي دي لیکن د امام حفص رحمه الله په روایت کې دلته اظهار هم جایز دی.

**دریمه قاعده**: په سورت یوسف دویمه رکوع کې لفظ د (لاتامنّا) چې دا په اصل کې (لا تامننا) ؤ نو په دې کې ادغام مع الاشمام او اظهار مع الروم کېږي لیکن خالص ادغام پکې ناجایز دی.

**څلورمه قاعده**: په قرآن کریم کې څلور ځایه سکته راغلې ده:

① عِوَجًاس قَيِمًا – سورة الكهف.

② مِنْ مَرْقَدِ نَا س هذَا – سورة يس.

(۳) وقيل منْ سـ راقْ – سورة القيمة.

(۴) كلا بلْ سـ ران – سورة المطففين.

سکته په لغت کې (السکوت) چپ کېدلو ته وايي

او په اصطلاح کې عبارت ده له: (هو قطع الصوت مع جريان النفس زمنا واسكان المتحرك ان كان متحركا).

يعني سکته د آواز ختمولوته وايي بغير د ماتولو د ساه نه او حرف متحرک ساکن کول که چېرې متحرک وي.

يعين د وقف او سکتې په منځ کې دا فرق دی چې په وقف کې ساه ماتيږي او په سکته کې نه ماتيږي نور وقف او سکته يو شان ده، او دا څلور واړه سکتې معنوي دي نه لفظي.

**پنځمه قاعده**: هرکله چې واو مشدد او يا مشدده باندې وقف وشي نو دغه واو او يا ته يو اندازه زور ورکول په کار دي چې شد صحيح أدا شي، داسې نه چې واو او يا مده ترې جوړه شي لکه: (على النبيّ، عدوٌّ).

**شپږمه قاعده**: په سورة يوسف کې (وليكونا) او په سورة علق کې (لنسفعا) چې په اصل کې نون ساکن دی ليکن تنوين ليکل شوی دی.

له دې وجې نه وقف په الف سره کېږي ځکه وقف تابع د رسم الخط دی.

**اومه قاعده**: په قرآن کريم کې څلور(۴) کلمات داسې دي چې ليکل شوی (صاد) دی او د هغه له پاسه کوچنی (سين) ليکل شوی دی.

① په سورت بقره کې (يبصط).

② په سورت اعراف کې (بصطة) په دې دواړو کې به فقط سين ويل کېږي

③ په سورت طور کې (آم هم المصيطرون) په دې کې (صاد) او (سين) دواړه ويل جائز دي.

④ په سورت الغاشية کې (بمصيطر) په دې کې فقط صاد ويل جايز دي .

**اتمه قاعده**: په قرآن کريم کې د ځينو کلماتو په منځ کې الف ليکل شوی دی خو لوستل کيږي نه ،او نښه يې داده چې ددې الف په سر به کوچنی صفر ليکل شوی وي او هغه کلمات دادي :

| | |
|---|---|
| ① لأ الى الله تحشرون، | سورة آل عمران. |
| ② ولأ اوضعوا، | سورة التوبة. |
| ③ لأ الى الجحيم. | سورة الصافات. |
| ④ او لأ اذبحنه، | سورة النمل. |
| ⑤ لأ ءنتم، | سورة الحشر. |
| ⑥ افائن، | سورة آل عمران. |
| ⑦ لشاىء، | سورة الكهف. |
| ⑧ ملائه، | سورة الاعراف. |
| ⑨ نباء ، | سورة النمل. |
| ⑩ مائة، | سورة الكهف. |
| ⑪ مائتين. | سورة الانفال. |



Scanned by CamScanner

# پای

وروستی بحث د اجتماع الساکنین په اړه دی :

اجتماع الساکنین په دوه (۲) ډوله دي :

① اجتماع الساکنین علی حده .

② اجتماع الساکنین علی غیر حده .

① اجتماع الساکنین علی حده دې ته وايي چې دوه ساکنین جمعه شي دواړه په یوه کلمه کې وي او اولنی حرف ساکن پکې حرف مده وي لکه: (خآصه، دآبّه، تعلمون).

نو حکم ددې دادی چې په دې باندې تلفظ کول صحیح دی .

یعني د اجتماع الساکنین علی حده لپاره دوه (۲) شرطونه دي :

① چې اولنی حرف ساکن پکې حرف مده وي .

② چې دواړه په یوه کلمه کې وي .

② اجتماع الساکنین علی غیر حده دې ته وايي چې د علی حده دواړه شرطونه پکې نه وي او یا هم یو.

بیا ددې اجتماع الساکنین علی غیرد حده لپاره درې (۳) شرطونه دي :

① چې هرکله دوه ساکنین په یوه کلمه کې جمع شي او اولنی حرف ساکن پکې حرف مده نه وي او دا فقط په وقف کې راځي او په حالت د وصل کې ختمیږي لکه: (القدر، العسر).

حکم ددی دادی چې په دې باندی تلفظ کول صحیح دی .

② هرکله چې دوه ساکنین په دوه کلمو کې جمع شي او اولنی حرف ساکن پکی حرف مده وي لکه: (قالاَ الْحمد، قالوُا لْین، فِي الأرْض).

نو حکم ددې دادی چې اولنی حرف ساکن حرف مده به لفظاً حذف کیږي.

③ هر کله چې دوه ساکنین په دوه کلمو کې جمع شي او اولنی حرف ساکن پکې حرف مده نه وي لکه: (قلِ الحمد، وانذر الناس).

نو حکم ددې دادی چې اولني حرف ساکن ته به کسره ورکول کیږي خکه قاعده داده چې: (الساکن إذا حرك حرك بالکسر) یعني حرف ساکن ته چې حرکت ورکول کیږي نو د کسرې حرکت به ورکول کیږي.

که چېرې اجتماع الساکنین کې اولنی حرف ساکن نون تنوین وي نو هغه به د کوچني نون په شکل ولیکل شي او کسره به ورکړل شي لکه: (قدیرن الذي) او دې ته نون قطني وایي.

لیکن ددې دریم صورت نه څلور(۴) کلمات مستثنی دي:

① هر کله چې دوه ساکنین په دوه کلمو کې جمع شي او اولنی حرف ساکن پکې میم د جمع یا واو لین د جمع وي لکه:

(علیکمُ القتال، ورواُ العذاب).

حکم ددې دادی چې دغه میم د جمع او واو لین د جمع ته به ضمه ورکول شي.

② هر کله چې دوه ساکنین په دوه کلمو کې جمع شي او اولنی حرف ساکن پکې نون د من جاره وي یا میم د (الم) په سورت آل عمران کې لکه: (منَ الله، الم الله).

نو حکم ددې دادی چې دغه نون د من جاره او میم د الم ته به فتحه ورکول شي ځکه فتح (اخف الحرکات) دی یعني سپک حرکت دی.

**فایده**: په اجتماع الساکنین کې چې کومه همزه وصلي په منځ کې راځي نو هغه به د وصل له وجې نه حذف کېږي، ددغې همزې وصلي د حذف کېدلو نه وروسته اجتماع الساکنین راځي.

له رب العزت څخه دا سوال کووم چې زما دا کوچنی هڅه د طلباء کرامو لپاره دستري فایدې او زما لپاره صدقه جاریه وګرځوي.

او په پای کې له ټولو لوستونکو څخه د کشر ورور په حیث غوښتنه کووم چې ټولو مسلمانانو او په ځانګړي ډول زما والدینو او مشر ورور سیدمحمد ( رحمه الله ) ته دزړه له تله دعاګانې وکړي.

کتبه: أبو یاسر عمر أحمد السلفي

2014-10-12 م





Scanned by CamScanner